# مجاهـدينو ته

# د اميرالمؤمنين حفظه الله

# لارښـووني

---

خپرندوی: د افغانستان اسلامي امارت
د فرهنګي چارو کميسيون، دتاليف او ترجمې څانګه

## د کتاب ځانگــــړنې:

---

**دکتاب نوم:** مجاهدینو ته د امیرالمؤمنین لارښوونې

**ابلاغ:** امیرالمؤمنین شیخ الحدیث مولوي هبة الله حفظه الله

**ترتیب:** شیخ الحدیث مولوي عبدالحکیم صاحب حفظه الله

**چاپ کال:** ۱٤۳۸هق

**چاپ وار:** لومړی

**چاپ شمېر:** ۵۰۰۰ ټوکه

**خپرندوی:** دافغانستان اسلامي امارت

د فرهنگي چارو کمیسیون، دتالیف او ترجمې څانگه

**دخپرونو لړ:** ۱٦

**ډیزاین:** تخنیکي څانگه

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيْمِ

# مــقدمـــه

إن الحمدلله نحمده ونستعينه ونستغفره ونستهديه، ونعوذ بـالله مـن شرور أنفسنا ومن سيئات أعمالنا من يهده الله فلا مضل له ومن يضلل فلا هـادى له، ونشهد أن لا إله إلا الله وحده لا شريك له ونشهد أن محمداً عبـده ورسـوله قـال الله تبارک و تعالى: إِنّ الله وَمَلائِكَتَهُ يُصَلُّونَ عَلَى النّبِيّ يَاأَيُّهَا الّذِينَ آمَنُواصَـلُّوا عَلَيْهِ وَسَلِّمُوا تَسْلِيمًا [الأحـزاب:٥٦]. اللّٰهُمَّ صـل وسـلم عليـه وعلى آله وصـحبه ومن سارعلى نهجه إلى يوم الدين. و أيضـا قـال الله تبـارک و تعالى:يأَيُّهَـا الَّذِيـنَ ءامَنُواْ اتَّقُواْ الله وَقُولُواْ قَوْلاًسَدِيداً. يُصْلِحْ لَكُمْ أَعْمَالَكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ وَمَن يُطِعِ الله وَرَسُولَهُ فَقَدْ فَازَ فَوْزاً عَظِيماً. صدق الله العظـيم [الأحـزاب : ٧٠-٧١].

محترمو مسلمانانو ورونو او بالخصوص د اسلامي امارت مجاهدينو !

د رسول الله صلى الله عليه وسلم دا طريقه وه چې کله به يې د مجاهدينو ټولى د کومې غزا لپاره لېږلو په دې وخت کې به يې ورته د جهاد د آدابو ، روا او ناروا په باره کې ديني لاربنووني کولې، ترڅو مجاهدين خپل جهادي کردار په شرعي طريقه ترسره کړي او د کوم تجاوز يا انحراف مرتکب نه شي.

په دې باره کې په صحیح مسلم شریف کې د حضرت بریدة رضی الله عنه په روایت حدیث راغلی چې فرمایي: كان رسول الله صلى الله عليه وسلم إذا أمّر أميراً على جيش أو سرية أوصاه بتقوى الله ومن معه من المسلمين خيراً، فقال: اغزوا باسم الله، في سبيل الله قاتلوا من كفر بالله، اغزوا ولا تغلوا، ولا تغدروا، ولا تمثلوا، ولا تقتلوا وليداً و ... الخ (رواه مسلم).

حضرت بریدة رضی الله عنه روایت کوي چې کله به رسول الله صلی الله علیه وسلم د صحابه کرامو د جهاد لښکر یا ټولي ته کوم امیر ټاکلو نو هغه أمیر او ورسره نورو مسلمانانو ته به یې د تقوی توصیه کوله، ورته ویل به یې: د الله تعالی په نوم او د الله تعالی په لاره کې له هغه چا سره جګړه وکړئ چې له الله تعالی یې انکار کړی او کافران شوي، جهاد وکړئ او په غنیمت کې غلا ، غدر او مثله مه کوئ او ماشوم مه وژنئ . . . . د احدیث شریف چې خورا اوږد دی رسول صَلَّىٰٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ په کې مجاهدینو ته هغه ضروري احکام او آداب ذکر کړي دي چې یو مجاهد ورته اړتیا لري.

د رسول الله صلي الله علیه وسلم له دې ارشاداتو څخه معلومیږي چې د مسلمانانو د هر أمیر دا وظیفه ده چې مجاهدینو ته وخت په وخت لارښوونې او هدایات صادر کړي، ترڅو د مجاهدینو جهاد په شرعي طریقه برابر او له انحرافاتو یا افراط او تفریط څخه محفوظ شي.

جهاد کوم لا محدود عمل یا خودسره قتال نه دی بلکې د هر دیني عمل په څېر د جهاد لپاره هم شریعت ځانګړي فقهي احکام او آداب ټاکلي، چې یوازې په هماغه لاره

تـګ او د هماغو شرایطو ، احکامو او لارښوونو پـه رعایت سره کیدای شي واقعي جهاد ترسره شي "اوبس" .

لکه څرنګه چې د نورو عباداتو له پیل نه مخکې د هغو شرعي احکام او آداب زده کول او ځان پرې پوهول ضرور دي، همدا سې په جهاد کې هم باید مجاهد لـه هر څه مخکې د جهاد په ضروري احکامو او آدابو ځان پوه کړي.

ټول هغه ضروري احکام چې مجاهدین ورته اړتیا لري دا سلامي امارت لخوا پـه عمومي (لائحه) کـې نشر شـوي دي، وخـت پـه وخـت د اسـلامي امـارت د زعـیم پـه پیغامونو، ځانګړو هدایاتو، د معسکراتو په درسونو او کلنیو تربیوي پروګرامونو کې هم بیا بیا بیان شوي دي.

د دې لپاره چې مجاهدین نور هم خپل کردار ته ښه متوجه شي، نیتونه او اعمال یې اصلاح او جهاد یې د الله تعالی په دربار کې د قبولتیا وړ وګرځي، د اسلامي امارت د زعیم أمیرالمؤمنین شیخ الحدیث مولوي هبة الله آخندزاده صاحب لخوا مجاهدینو ته دغه لارښوونې وړاندې کیږي، مجاهدین دې کوښښ وکړي چې دا لارښوونې ولولي، ځان پرې پوه کړي او عمل پرې وکړي، که کوم مجاهد یې په خپله نشي مطالعه کولای نو بل مجاهد دې چې لیک لوست کولای شي ورته ولولي او ورباندې پوه دې کړي.

الله تعالی تـه دعـاء کـوو چـې دغـه لارښـوونې مقبـولې او مؤثرې وګرځـوي ترڅـو پـه مجاهدینو کې د لازیات اخلاص، اصلاح، تقوی، حسنه اخلاقو، اخوت او اتحاد د پیدا کیدو سبب شي. دغـه راز د اسلامي امـارت د رهبري شورا غړي شیخ الحدیث مولـوي

عبدالحکیم صاحب ته هم له الله تعالی څخه کامل اجرونه او د دارینو سعادت غواړو چې د دې رسالې په برابرولو کې یې ډېره همکاري وکړه. الله تعالی دې سعی قبوله کړي.

آمین یا رب العلمین

# مجاهدينو ته د شريعت په رڼا کې لارښوونې

الحمد لله رب العلمين، الذي بعث رسوله بالخلق العظيم وجعله قائدا للمجاهدين والصلوة والسلام على من أتم مكارم الأخلاق و أمر بها الى الحكام والمجاهدين وعلى اله واصحابه الذين هم قدوة الأمة في اعلاء كلمة الله الى يوم الدين.

امابعد :

څرنګه چې اوس د جهاد وخت دی په ځانګړې توګه زموږ په اشغال شوي هيواد افغانستان کې مجاهدين د دښمنانو په وړاندې په اسلامي مبارزه اخته دي؛ نو ځکه ما اراده وکړه چې د الله جل جلاله د مقدس کتاب او نبوي احاديثو په رڼا کې د دوی لپاره هغه څه وليکم چې اوس مهال د دوی تر ټولو لومړنۍ اړتيا ده، الله جل جلاله دې موږ او دوی ټولو ته د عمل توفيق راکړي.

* * *

# نیــت او اهمــیت یــې

نیت چې نه یوائې په جهاد بلکې په ټولو عباداتو کې مهم امر دی الله جل جلاله یې په اړه فرمایي: وَما أمروا إِلاَّ لِيَعْبُدُوا اللّٰه مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ حُنَفاءَ وَيُقِيمُوا الصَّلاةَ وَيُؤْتُوا الزَّكاةَ وَذلِكَ دِينُ الْقَيِّمَةِ [البینة: ٥]

ژباړه: او هغوی ته (هم) بل څه امر نه و شوی، پرته له دې چې د الله تعالی عبادت وکړي په داسې حال کې چې هغه لره د خپل دین سوچه کوونکي حق پلوي اوسي، لمونځ دې ترسره کوي، زکات دې ورکوي او همدا سم برابر دین دی.

في تفسير المنير، الإخلاص:هو أن يأتي بالفعل خالصا لداعية واحدة ولا يكون لغيرها من الدواعي تأثير في الدعاء إلى ذلك الفعل. وقوله: مُخْلِصِينَ تنبيه على ما يجب من تحصيل الإخلاص من ابتداء الفعل إلى انتهائه. والمخلص: هو الذي يأتي بالحسن لحسنه والواجب لوجوبه، فيأتي بالفعل مخلصا لربه، لا يريد رياء ولا سمعة ولا غرضا آخر، بل قالوا: لا يجعل طلب الجنة مقصودا ولا النجاة عن النار مطلوبا وإن كان لا بد من ذلك.(ج٣٠/ص٣٤٦)

ژباړه: اخلاص دې ته ویل کېږي چې کار یوازې د یوې داعیې لپاره ترسره شي او د نورو غوښتنو اغیز پکې نه وي. د "مخلصین" ټکی د دې خبرداري ورکولو لپاره دی چې کار باید له پیله تر پایه په اخلاص سره وي او مخلص هغه

څوک دی چې نېک کار ددې لپاره کوي چې په هغه کې ښېګڼه ده او واجب کار ځکه کوي چې پرې واجب دی، په دې ډول هر کار یوازې د خپل خدای لپاره ترسره کوي، نه یې کې دریا اراده لري نه د سمعت او نه د کوم بل شي، بلکې علماء خولا دا هم وایي چې د نیک کار له ترسره کولو یې مقصد جنت ته تلل او له دوزخ څخه د ځان ژغورل هم نه وي، که څه هم له هغه څخه چاره نسته).

وفي شرح المهذب: وَعَنْ ذِي النُّونِ رَحِمَهُ الله قَالَ ثَلَاثَةٌ مِنْ عَلَامَاتِ الْإِخْلَاصِ اسْتِوَاءُ الْمَدْحِ وَالذَّمِّ مِنْ الْعَامَّةِ وَنِسْيَانُ رُؤْيَةِ الْأَعْمَالِ فِي الْأَعْمَالِ وَاقْتِضَاءُ ثَوَابِ الْعَمَلِ فِي الْآخِرَةِ. وَعَنْ أَبِي عُثْمَانَ رَحِمَهُ الله قَالَ الْإِخْلَاصُ نِسْيَانُ رُؤْيَةِ الْخَلْقِ بِدَوَامِ النَّظَرِ إلَى الْخَالِقِ. وَعَنْ حُذَيْفَةَ الْمَرْعَشِيِّ رَحِمَهُ الله قَالَ الْإِخْلَاصُ أَنْ تَسْتَوِيَ أَفْعَالُ الْعَبْدِ فِي الظَّاهِرِ والباطن.(ج١/ص٢٩).

ژباړه: په شرح المهذب کې د حضرت ذوالنون مصري رحمه الله په حواله راغلي چې د مخلص درې علامې دي:

لومړی دا چې د خلکو مدح او ذم به دواړه ورته یو برابر وي.

دوهم خلکو ته به خپل عمل د ریاء لپاره نه څرګندوي.

دریم په اخرت کې به د عمل په مقابل کې د نیکې بدلې هیله ساتي.

له ابی عثمان رحمه الله څخه روایت دی وایي: اخلاص دا دی، چې الله تعالی ته د همېشنۍ توجه او نظر له امله خلکو ته ځان ښوونه- نه کوي. د حذیفه مرعشي رحمه الله څخه یې نقل کړی وایي چې د بنده افعال په ظاهر او باطن کې سره برابر وي دا اخلاص دی.

بل ځای الله جل جلاله فرمايي: وَادْعُوهُ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ كَمَا بَدَأَكُمْ تَعُودُونَ [الاعراف ۲۹] .

ژباړه: او د الله عبادت کوئ په داسې حال کي چې يوائې دالله لپاره تاسو (له ريا ، عجب او هر نقصان څخه) د دين خالص کوونکي ياست ، لکه په کوم شان چې الله پيدا کړي ياست په دغه شان به بيا الله تعالي ته ور ګرځئ.

حضرت عمر رضی الله عنه روایت کوي:

قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «إِنَّمَا الأَعْمَالُ بِالنِّيَّاتِ، وَإِنَّمَا لِكُلِّ امْرِئٍ مَا نَوَى، فَمَنْ كَانَتْ هِجْرَتُهُ إِلَى دُنْيَا يُصِيبُهَا أَوْ إِلَى امْرَأَةٍ يَنْكِحُهَا، فَهِجْرَتُهُ إِلَى مَا هَاجَرَ إِلَيْهِ». (متفق عليه)

ژباړه: له رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څخه مې واورېدل چې ويل يې: د عملونو اعتبار (ثواب) په نيت سره دی د هرچا نيت (معتبر) دی، که يو چا د الله تعالی او د هغه د رسول صلی الله عليه وسلم لپاره هجرت وکړ، نو هجرت يې د الله او رسول عليه السلام لپاره ګڼل کيږي او که د دنيا حاصلولو او يا له ښځي سره د نکاح کولو لپاره يې هجرت وکړ، نو هجرت يې د همدې شيانو لپاره دی، معنی دا چې صحيح نيت نفع رسوي او فاسد نيت فساد راولي، نو څوک دې په دې نه تير وځي چې ظاهر يې ښايسته وي، باطن يې بد رنګه وي، الله پاک ته زړونه معتبر دي (فيض الباري).

حضرت موسی اشعري رضی الله عنه روایت کوي: قَالَ أَعْرَابِيٌّ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الرَّجُلُ يُقَاتِلُ لِلْمَغْنَمِ وَالرَّجُلُ يُقَاتِلُ لِيُذْكَرَ وَيُقَاتِلُ لِيُرَى مَكَانُهُ

مَنْ فِي سَبِيلِ اللهِ ؟ فَقَالَ مَنْ قَاتَلَ لِتَكُونَ كَلِمَةُ اللهِ هِيَ الْعُلْيَا فَهُوَ فِي سَبِيلِ اللهِ. (صحيح البخاري برقم٢٨١٠).

ژباړه: يوه اعرابي د الله رسول صلی الله علیه وسلم ته وويل: يو سړی د غنيمت لپاره جهاد کوي، بل د دې لپاره چې خلک يې (په شجاعت او زړورتوب) وستايي او بل د رياء لپاره (چې خلک و وايي چې ده په فلانۍ غزوه کې شرکت کړی و) په دوی کې کوم يو د الله د لارې مجاهد دی؟

رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمايل، چې له دوی څخه يوازې هغه فی سبیل الله مجاهد دی چې د الله جل جلاله د کلمې د لوړوالي لپاره جهاد کوي

علماء کرام وايي، که يو څوک په جهاد کې د الله تعالی د کلمې د لوړوالي نيت ونه کړي، بلکې د نورو اهدافو لپاره يې کوي، نو بيا د هغه عمل ته جهاد نه بلکې جګړه ويل کيږي، چې بيا د هغو انعاماتو مستحق نه ګرځي، چې الله تعالی يې له مجاهدينو سره وعده کړې ده:

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا هَلْ أَدُلُّكُمْ عَلَى تِجَارَةٍ تُنْجِيكُمْ مِنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ * تُؤْمِنُونَ بِاللهِ وَرَسُولِهِ وَتُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللهِ بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنْفُسِكُمْ ذَلِكُمْ خَيْرٌ لَكُمْ إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ * يَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ وَيُدْخِلْكُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ وَمَسَاكِنَ طَيِّبَةً فِي جَنَّاتِ عَدْنٍ ذَلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ﴾ [الصف ١٠ - ١٢].

ژباړه: اې هغو کسانو چې تاسو ايمان راوړی (اې مومنانو)، ايا تاسو ته در وښيم داسې تجارت، چې له دردناک عذاب څخه مو ساتي، (دغه تجارت کوئ،

هغه داده چې) ایمان راوړئ په الله تعالی او د هغه په رسول او جهاد کوئ تاسي (اې مومنانو) په لاره د الله تعالی کې، په خپلو مالونو او نفسونو سره، (په الله تعالی او د هغه په رسول ایمان راوړل او د الله تعالی په لاره کې په مال او نفس جهاد کول) خیر دی تاسو لره، که چیرته تاسو پوهیږئ، نو بخښنه به درته وکړي (الله تعالی) د ګناهونو او هغو جنتونو ته به مو داخل کړي، چې (له ماڼیو او ونو) لاندې ورڅخه (د پاکو شرابو، شاتو، شیدو، او خوږو اوبو) ویالې بهیږي او (داخل به مو کړي) په ښائسته او پاکیزه ځایونو (ماڼیو) کې چې د همیشه اوسېدلو په جنتونو کې (جوړ شوي) دغه لویه کامیابي ده.

دلته الله تعالی دغه نعمتونه د هغه چا لپاره ټاکلي، چې د الله تعالی په لاره کې جهاد کوي او نبی علیه السلام وايي: د الله تعالی په لاره کې جهاد هغه دی، چې د الله تعالی د کلمې د لوړوالي لپاره وشي، فتح الباري د ابو موسی اشعری رضی الله عنه د حدیث په اړه وايي، چې دلته نبی علیه السلام له بلاغت او ایجاز څخه ډک ځواب ورکړ، ځکه که یې په ځواب کې داسې ورته ویلي وای: چې کوم شیان تایاد کړل، دا د الله تعالی په لاره کې نه دي، نو دا احتمال یې و، چې له دغو پرته نور ټول د الله تعالی په لاره کې دي او داسې خو نه ده، نو یو جامع لفظ یې ذکر کړ، یعنی که د الله تعالی د کلمې د لوړوالي لپاره و، هغه د الله تعالی په لاره کې جهاد دی او که نه، نور چې د هر څه لپاره وي هغه د الله تعالی په لاره کې جهاد نه دی، ابن حجر رحمه الله وايي، چې د اعلاء کلمة الله طلب، د الله تعالی د رضاء، د الله تعالی د ثواب او د الله

تعالی د دښمنانو د له منځه وړلو په طلب مشتمل دی، ځکه دا ټول شيزونه سره متلازم دي.

د الله تعالی د کلمې له لوړوالي څخه مطلب څه دی؟ تفسير ابن کثير د دغه آيت: وَجَعَلَ كَلِمَةَ الَّذِينَ كَفَرُوا السُّفْلَىٰ وَكَلِمَةُ اللَّهِ هِيَ الْعُلْيَا وَاللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ. په تفسير کې وايي: قال ابن عباس: « كلمة الذين كفروا» الشرك و « كلمة الله» هي: لا إله إلا الله .

ژباړه: (الله تعالی) د هغو کسانو کلمه، چې کفر يې کړی دی (کافران دي) ښکته کړې او د الله تعالی کلمه لوړه ده، الله تعالی غالب او د حکمت خاوند دی، ابن عباس رضی الله عنه وايي، چې د کفر د کلمې څخه مطلب شرک او د الله تعالی له کلمې څخه مطلب لا إله إلا الله دی، په تفسير طبري کې کلمة الله د الله تعالی له دين، د الله تعالی له توحيد او له لا إله إلا الله څخه عبارت ده.

د الله تعالی د کلمې لوړوالی د شريعت تر تحکيم او نفاذ پوري تړلی دی او د شريعت نفاذ د اسلامي حکومت (خلافت او امارت) تر قائمېدو پورې مربوط دی، ځکه کله چې اسلامي حکومت قائم شي، نو شريعت به نافذ شي او چې شريعت نافذ شو، همدا د الله تعالی د کلمې لوړوالی دی، نو مجاهد چې خاوره له اشغال څخه خلاصوي هم همدا به يې نيت وي، چې تر څو شرعي نظام پرې راولي او د جهاد هدف همدا دی، چې د الله تعالی په ټوله خاوره د الله تعالی کلمه لوړه شي.

کله چې د یو چا نیت د الله تعالی د کلمې لوړوالی نه وي، یعنی باعث اصلي یې همدا نه وي، نو که د جهاد په لاره کې مرګ ورته ورسیږي، هغه حقیقي شهید نه بلل کیږي او د هغې مرتبې او نعمتونو څخه نه برخمن کیږي، چې شهید ته ورکړل شوي دي، الله تعالی د شهیدانو په اړه فرمايي: وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَمْوَاتًا بَلْ أَحْيَاءٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُونَ* فَرِحِينَ بِمَا آتَاهُمُ اللَّهُ مِنْ فَضْلِهِ وَيَسْتَبْشِرُونَ بِالَّذِينَ لَمْ يَلْحَقُوا بِهِمْ مِنْ خَلْفِهِمْ أَلَّا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ*يَسْتَبْشِرُونَ بِنِعْمَةٍ مِنَ اللَّهِ وَفَضْلٍ وَأَنَّ اللَّهَ لَا يُضِيعُ أَجْرَ الْمُؤْمِنِينَ* [آل عمران: ۱۶۹-۱۷۱]

ژباړه: په هغو کسانو د مړوګمان مه کوئ چې د الله تعالی په لاره کې وژل شوي ، هغوی ژوندي دي، د رب په نزد ورته (د جنت له خوراکونو او څښاکونو څخه) رزق ورکول کیږي دوی په هغه څه باندې خوشحاله دي چې د الله تعالی له لوري له خپل فضل څخه ورکړل شوي، دوی په هغو کسانو (په ورتللو) خوشحالیږي چې لا په دوی پوري تر دوی وروسته نه دي پیوسته شوي ، په دې ډول چې هیڅ ویره په دوی نشته او نه به هم دوی غمجن کیږي، دوی خوشحالیږي په نعمت د الله تعالی او د الله تعالی په فضل سره او بې شکه الله تعالی د مومنانو اجر نه ضائع کوي.

شهادت هغه مرتبه ده، چې نبی علیه السلام یې درې ځله غوښتنه کړې ده والذی نفس محمد بیده لوددت أنی أغزو فی سبیل الله فأقتل ثم أغزو فأقتل ثم أغزو فأقتل، یعنی: نبی علیه السلام وایي، چې زما دې په هغه ذات قسم وي، چې د محمد (صلی الله علیه وسلم) نفس د هغه په "ید "کې دی، زه دا خوښوم، چې د الله

تعالی په لاره کې جګړه وکړم او شهید شم، یا جګړه وکړم او شهید شم، یا جګړه وکړم او شهید شم، همداسې نور ډیر آیتونه او احادیث د شهید د مرتبې د لوړوالي په اړه راغلي دي، خو دغه کس چې نیت یې په جهاد کې سم نه وي او یا په دغه لاره کې ووژل شي، د شهید له مرتبې څخه محروم دی او د الله تعالی په نزد شهید نه دی.

د چا چې نیت په جهاد کې د الله تعالی لپاره نه وي، اجر خو نه ورکول کیږي، بلکې د عذاب مستحق ګرځي، لکه د حضرت ابو هریره رضی الله عنه په روایت کې چې راځي، سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: إِنَّ أَوَّلَ النَّاسِ يُقْضَى يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلَيْهِ رَجُلٌ اسْتُشْهِدَ، فَأُتِيَ بِهِ فَعَرَّفَهُ نِعَمَهُ فَعَرَفَهَا، قَالَ: فَمَا عَمِلْتَ فِيهَا؟ قَالَ: قَاتَلْتُ فِيكَ حَتَّى اسْتُشْهِدْتُ، قَالَ: كَذَبْتَ وَلَكِنَّكَ قَاتَلْتَ لِأَنْ يُقَالَ: جَرِيءٌ، فَقَدْ قِيلَ، ثُمَّ أُمِرَ بِهِ فَسُحِبَ عَلَى وَجْهِهِ حَتَّى أُلْقِيَ فِي النَّارِ. (رواه مسلم).

ژباړه: حضرت ابو هریره رضی الله عنه وایي، ما له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه واورېدل، چې ویل یې: د قیامت په ورځ اول کس چې په اړه به یې فیصله کیږي هغه سړی دی، چې شهید شوی وي، نو را به وستل شي، الله تعالی به ده ته هغه نعمتونه وریاد کړي، چې په دنیا کې یې ورکړي وو، دی به هم هغه ټول ومني، بیا به الله تعالی ورته ووایي: تا زما له درکړل شویو نعمتونو څخه څه ډول کار واخیست؟ هغه به وایي: ما ستا په لاره کې جهاد وکړ، تر څو شهید شوم، الله تعالی به ورته ووایي، چې دروغ دې وویل، تا د دې لپاره جهاد کاوه، چې خلک درته دلاوره ووایي او هغه درته وویل شول، بیا به دغه سړی د الله تعالی په امر پړمخې کش کړای شي او دوزخ ته به ور واچول شي.

حضرت سهل ابن سعد رضی الله عنه روايت کوي:

قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " نِيَّةُ الْمُؤْمِنِ خَيْرٌ مِنْ عَمَلِهِ، وَعَمَلُ الْمُنَافِقِ خَيْرٌ مِنْ نِيَّتِهِ، وَكُلٌّ يَعْمَلُ عَلَى نِيَّتِهِ، فَإِذَا عَمِلَ الْمُؤْمِنُ عَمَلًا نَارَ فِي قَلْبِهِ نُورٌ" (طبراني فی الکبير: رقم۵۹۴۲).

ژباړه: رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي، چې د مسلمان نيت د هغه تر عمل غوره دی او د منافق عمل د هغه تر نيت غوره دی، هر يو له دوی څخه د خپل نيت مطابق عمل کوي، کله چې مسلمان کوم عمل وکړي نو په زړه کې يې نور وځليږي.

# د نيت ګټې:

**لومړی:** په نيت سره عمل لوييږي او ډيريږي.

ابو سعيد خدري او ابو هريرة رضی الله عنهما روايت کوي چې: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَسُبُّوا أَصْحَابِي فَوَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَوْ أَنَّ أَحَدَكُمْ أَنْفَقَ مِثْلَ أُحُدٍ ذَهَبًا مَا أَدْرَكَ مُدَّ أَحَدِهِمْ وَلَا نَصِيفَهُ "(بخاري:رقم۳۶۷۳)

ژباړه: رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلی دي، چې زما اصحابو ته ښکنځل مه کوئ، زما دې په هغه ذات قسم وي چې زما روح د ده په واک کې دی، که

له تاسو څخه یو څوک د أحد د غره هومره مال صدقه وکړي بیا به هم د دوی یوې او یا نیمي پیمانې (مُد) ته ونه رسیږي، مراد یې دادی چې لږ صدقه د دوی د اخلاص او صحي نیت په وجه دومره غټه ده چې تاسو د احد د غره په اندازه صدقه وکړئ بیا هم د دوی د ثواب اندازې ته نه رسیږي.

قَالَ عَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ: لَا يَقِلُّ عَمَلٌ مَعَ تَقْوَى وَكَيْفَ يَقِلُّ مَا يُتَقَبَّـلُ؟ (رواه ابن ابي الدنيا في الاخلاص برقم ٦).

ژباړه: حضرت علي کرم الله وجهه فرمايي: هغه عمل چې تقوا ورسره وي که هر څومره کم وي، بیا هم لږ نه دی او منل شوی عمل به څرنګه لږ وي.

وقال الغزالي في احياء العلوم فقد ورد عن بعض السـلف رب عمـل صـغير تعظمه النية ورب عمل كبير تصغره النية. (ج٤ص٣٦٤).

ژباړه: امام غزالي په احياء العلوم کې وايي: په سلف صالحينو کې له ځینو روایت دی، چې ډېر وخت یو وړوکی عمل وي، خو د ښه نیت په وجه ډیر لوی شي، همدا رنګه یو ډیر لوی عمل وي خو د نیت د خرابي په وجه وړوکی عمل ترې جوړ شي.

خلاصه دا چې پر هر مؤمن مسلمان لازمه ده چې د نیت اصلاح به کوي – په تېره بیا مجاهد ته – ځکه چې لږ عمل وکړي په صحیح نیت سره الله سبحانه به یې عمل ورغټ کړي.

**دوم:** د ښه نیت په وجه دعا او عمل قبلیږي.

اخرج ابن ابي الدنيا في الاخلاص برقم(٨ ) قال حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الْحُسَيْنِ، حَدَّثَنِي عَمَّارُ بْنُ عُثْمَانَ الْحَلَبِيُّ، حَدَّثَنَا سِرَارٌ الْعَنَزِيُّ، قَالَ: سَمِعْتُ عَبْدَ الْوَاحِدِ بْنَ زَيْدٍ، يَقُولُ: الْإِجَابَةُ مَقْرُونَةٌ بِالْإِخْلَاصِ لَا فُرْقَةَ بَيْنَهُمَا.

ژباړه: سرار العنزي وايي چې ما له عبدالواحد بن زيد نه واورېدل چې ويل يې اجابت له اخلاص سره داسې تړلې دی چې تر منځ يې هيڅ بيلتون نشته.

تنبيه: دا چې زموږ دعاوې نه قبليږي ځکه چې اخلاص ورسره نه وي، اخلاص او دعا قبلېدل سره تړلي دي.

دريم: الله تعالی د بندګانو زړونه د مخلص مؤمن په خوا اړوي.

اخرج ابن ابي الدنيا في الاخلاص برقم (١٢) قال حَدَّثَنَا دَاوُدُ بْنُ عَمْرٍو الضَّبِّيُّ قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو شِهَابٍ عَنْ لَيْثٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ وَاسِعٍ قَالَ: إِذَا أَقْبَلَ الْعَبْدُ إِلَى اللَّه أَقْبَلَ اللَّه بِقُلُوبِ الْعِبَادِ إِلَيْهِ .

ژباړه: محمد بن واسع وايي: کله چې بنده الله ته مخ کړي الله تعالی د نورو بندګانو زړونه ده ته مخ کوي. معنی دا چې کله مسلمان بنده د الله سبحانه عبادت جهاد وي که بل عبادت، په اخلاص او صحيح نيت کوي الله جَلَّجَلَالُهُ د غه بنده د مسلمانانو په زړو کې محبوب ګرځوي.

څلورم: په نيت سره د مېزان په تله کې عمل درنيږي.

اخرج ابن ابي الدنيا في الاخلاص برقم(٢٣) قال حَدَّثَنَا أَبُو مُحَمَّدٍ الْقَاسِمُ بْنُ هَاشِمٍ السِّمْسَارُ، حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ قُتَيْبَةَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ

عَلِيٍّ قَالَ: قَالَ عَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ: مَنْ كَانَ ظَاهِرُهُ أَرْجَحَ مِنْ بَاطِنِهِ خَفَّ مِيزَانُهُ يَـوْمَ الْقِيَامَةِ وَمَنْ كَانَ بَاطِنُهُ أَرْجَحَ مِنْ ظَاهِرِهِ ثَقُلَ مِيزَانُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ.

ژباړه: حضرت علي کرم الله وجهه وايي: د چا چې ظاهر تر باطن ښکلی وي د قيامت په ورځ به يې عمل سپک خيژي او د چا چې باطن تر ظاهر ښکلی وي نو د هغه عمل به د قيامت په ورځ په تله کې دروند خيژي.

تنبيه: د قيامت په ورځ د نېک عمل سپکوالی او درندوالی له نيت سره تړلی دی.

**پنځم:** د الله تعالی مرسته د نيت او اخلاص په اندازه وي.

قَالَ أَبُو الْعَبَّاسِ عَبْدُ الله بْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ الله عَنْهُمَا إِنَّمَا يُعْطَى الرَّجُلُ عَلَى قَدْرِ نِيَّتِهِ، (شرح المهذب ج ١ص١٧)

ژباړه: حضرت عبد الله ابن عباس رضی الله عنه وايي: هرچا ته د الله ورکړه د هغه د نيت په اندازه وي.

وكتب سالم بن عبد الله إلى عمر بن عبد العزيز اعلم أن عـون الله تعـالى للعبد على قدر النية فمن تمت نيته تـم عـون الله له وإن نقصـت نقـص بقـدره. (احياء العلوم ج٤ص٣٤٦).

ژباړه: سالم بن عبد الله د اسلام خليفه عمر بن عبد العزيز ته وليکل: پوه شه چې له بنده سره د الله تعالی مرسته د بنده د نيت په اندازه وي، د چا چې نيت بشپړ وي د الله تعالی مرسته به هم ورسره بشپړه وي او که د چا نيت ناقص او کم وي نو د الله تعالی مرسته به هم ورسره کمه وي.

تنبیــه: بایـد هـر مجاهـد پـه تېـره بیـا امیـران د خپلو نیتونـو مکملـه اصـلاح وکړي، ځکه د الله جَلَّجَلَالُهُ امداد په نیت پورې تړلی دی.

**شپږم:** په سم نیت باندې د هغه عمل ثواب هم تر لاسه کیږي چې ترسره شوی نه وي.

حضرت انس رضی الله عنه وايي: رَجَعْنَا مِنْ غَزْوَةِ تَبُوكَ مَعَ النَّبِيِّ صـلي الله علیه وسلم، فقال: « إِنَّ أَقْوَاماً خَلْفَنَا بِالْمَدِينَةِ مَا سَلَكْنَا شِعْباً وَلاَ وَادِياً ، إِلاّ وَهُمْ مَعَنَا ؛ حَبَسَهُمُ العُذْرُ». (رواهُ البخاريُّ رقم: ۲۸۳۸)

ژباړه: مـوږ لـه رسـول الله علیـه السـلام سره د تبـوک لـه غـزا راسـتانه شـوو، نـو رسول الله علیه السلام وفرمایل: بېشکه په مدینه کې داسې خلک زموږ تر شا پاتـه دي چې مـوږ بـه پـه هیـڅ خـوړ او کنـده نـه یـو تیر شـوي مګر دوی راسره پـه اجر کې شریک دي، هغه کسان چې په غزا کې د شرکت نیت یې وو خو عذر پاته کړل.

تنبیـه: لـه هر مؤمن مسـلمان سره بایـد هر وخـت د جهـاد عـزم وي کـه څـه هم معذور وي الله سبحانه به د مجاهد ثواب ورکړي.

**اووم:** په نیت سره مسلمان له منافق څخه بېلیږي.

حضرت ابو هریرة رضی الله عنه روایت کـوي: قَالَ: «مَنْ مَاتَ وَلَـمْ يَغْـزُ، وَلَـمْ يُحَدِّثْ نَفْسَهُ بِالْغَزْوِ مَاتَ عَلَى شُعْبَةٍ مِنْ نِفَاقٍ».(رواه ابوداود:رقم ۲۵۰۲).

ژباړه: څوک چې مړ شي او غزا ونکړي او له ځانه سره یې د غـزا کـولـو نیت هم نه وي کړی، نو هغه د منافقت په یوه ډول مړ سو.

تنبیه: پر هر مؤمن لازمه ده چې په یو قسم د جهاد کې به شرکت کوي او یا به یې زړه کې د جهاد صحیح عزم وي، نو به یې الله تعالی د نفاق له مرګه وساتي.

**اتـم:** نیت داسې علاج دی چې عـادت پـه عبـادت بـدلوي او بدرنګه ښایسته کوي، نو هوښیار سړی یوازې د الله لپاره عبادت کوي.

له سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه څخه روایت دی: أَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «إِنَّكَ لَنْ تُنْفِقَ نَفَقَةً تَبْتَغِي بِهَـا وَجْـهَ الله إِلَّا أُجِـرْتَ عَلَيْهَـا، حَتَّى مَا تَجْعَلُ فِي فَمِ امْرَأَتِک». (رواه البخاري، برقم:٥٦)

ژباړه: تا چې د الله لپاره هرڅه صدقه او نفقه کړي الله یې ثواب درکوي، تر دې چې د خپلې میرمنې په خوله کې ګوله (مړی) ږدې.

قال في المرقاة وَالْمَعْنَى أَنَّ الْمُنْفِقَ لِابْتِغَاءِ رِضَاهُ تَعَالَى يُـؤْجَرُ وَ إِنْ كَانَ مَحَـلُّ الْإِنْفَاقِ مَحَلَّ الشَّهْوَةِ وَحَظَّ النَّفْسِ، لِأَنَّ الْأَعْمَالَ بِالنِّيَّاتِ وَنِيَّةُ الْمُؤْمِنِ خَيْرٌ مِـنْ عَمَلِهِ.

د دغه حدیث شریف په شرح کې د مرقات مؤلف لیکي، چې د الله لپاره صدقه ورکونکي تـه ثـواب شته که څه هم هغـه ځای د شهوت او نفسي خواهش وي (لکه خپلې مېرمنې ته په خوله کې ډوډۍ ورکول) ځکه د عملونو ثواب په نیت سره دی او د مؤمن نیت تر عمل غوره دی.

**نـهـم:** په نیت سره سړی د خلکو له شره خلاصېږي.

قال الامام الغزالي في الاحياء وكتب عمر بن الخطاب رضي الله تعالى عنه إلى أبي موسى الأشعري من خلصت نيته كفاه الله تعالى ما بينه وبين الناس. (ج۴ص۳۷۸) امام غزالي په احياء العلوم کې ليکي، چې عمر ابن الخطاب موسى اشعرى رضي الله عنهما ته وليکل: د چا نيت چې يوازې د الله رضاوي الله به يې له خلکو وژغوري.

تنبيه: که مؤمن وغواړي چې د خلکو د ضرر څخه وژغورل سي په خپل عمل کې دې صحيح نيت کوي الله تعالى به يې د خلکو د ضرر څخه وساتي.

لسم: د ناسم نيت په وجه به سړي ته په طاعت هم عذاب ورکول کيږي.

له حضرت ابو هريرة رضى الله عنه څخه وپوښتل شول، چې له رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه دې کوم حديث اوريدلى دى هغه را ته ووايه!

ابو هريره رضي الله عنه وفرمايل:

سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: إِنَّ أَوَّلَ النَّاسِ يُقْضَى يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلَيْهِ رَجُلٌ اسْتُشْهِدَ، فَأُتِيَ بِهِ فَعَرَّفَهُ نِعَمَهُ فَعَرَفَهَا، قَالَ: فَمَا عَمِلْتَ فِيهَا؟ قَالَ: قَاتَلْتُ فِيكَ حَتَّى اسْتُشْهِدْتُ، قَالَ: كَذَبْتَ وَلَكِنَّكَ قَاتَلْتَ لِأَنْ يُقَالَ: جَرِيءٌ، فَقَدْ قِيلَ، ثُمَّ أُمِرَ بِهِ فَسُحِبَ عَلَى وَجْهِهِ حَتَّى أُلْقِيَ فِي النَّارِ، وَ رَجُلٌ تَعَلَّمَ الْعِلْمَ وَعَلَّمَهُ وَقَرَأَ الْقُرْآنَ، فَأُتِيَ بِهِ فَعَرَّفَهُ نِعَمَهُ فَعَرَفَهَا، قَالَ: فَمَا عَمِلْتَ فِيهَا؟ قَالَ: تَعَلَّمْتُ الْعِلْمَ وَعَلَّمْتُهُ وَقَرَأْتُ فِيكَ الْقُرْآنَ، قَالَ: كَذَبْتَ وَلَكِنَّكَ تَعَلَّمْتَ الْعِلْمَ لِيُقَالَ: عَالِمٌ، وَقَرَأْتَ الْقُرْآنَ لِيُقَالَ: هُوَ قَارِئٌ، فَقَدْ قِيلَ، ثُمَّ أُمِرَ بِهِ فَسُحِبَ

عَلَى وَجْهِهِ حَتَّى أُلْقِيَ فِي النَّارِ، وَ رَجُلٌ وَسَّعَ اللهُ عَلَيْهِ وَأَعْطَاهُ مِنْ أَصْـنَافِ الْمَـالِ كُلِّهِ، فَأُتِيَ بِهِ فَعَرَّفَهُ نِعَمَهُ فَعَرَفَهَا، قَالَ: فَمَا عَمِلْـتَ فِيهَـا؟ قَـالَ: مَـا تَرَكْـتُ مِـنْ سَبِيلٍ تُحِبُّ أَنْ يُنْفَقَ فِيهَا إِلَّا أَنْفَقْتُ فِيهَا لَـكَ، قَـالَ: كَـذَبْتَ، وَلَكِنَّـكَ فَعَلْـتَ لِيُقَالَ: هُوَ جَوَادٌ، فَقَدْ قِيلَ، ثُمَّ أُمِرَ بِهِ فَسُحِبَ عَلَى وَجْهِهِ، ثُمَّ أُلْقِيَ فِي النَّـارِ. (رواه مسلم، رقم:۱۹۰۵)

ژباړه: له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه مې اورېدلي، چې ویل یې: د قیامت په ورځ به لومړۍ فیصله د درېیو له خلکو په باره کې وي: یوه د شهید په باره کې، چې هغه به راوغوښتل شي او الله جل جلاله به ده ته هغه نعمتونه وریاد کړي چې په دنیا کې یې ورکړي ول، دی به هم تول ومني، بیا به الله تعالی ورته ووایي: چې تا زما له درکړو دغو نعمتونو څنګه کار واخیست؟ هغه به ووایي: چې ما ستا په لاره کې جهاد کاوه ترهغو چې شهید شوم. الله به ورته ووایي: چې دروغ وایې! تا د دې لپاره جهاد کاوه چې خلک درته زړور ووایي، هغه درته وویل شول، دغه سړی به د الله په امر پړمخې کش کړل شي او دوزخ ته به وغورځول شي.

بله فیصله به د هغه عالم په باره کې وي، چې پخپله یې علم کړی وي، قرآن یې زده کړی وي او نورو ته یې هم علم ورښوولی وي، ده ته به هم لکه د شهید غوندې الله تعالی په دنیا کې ورکړي ټول نعمتونه وریاد کړي او هغه به هم ټول ومني، بیا به الله جل جلاله ورته ووایي، چې تا زما له دې نعمتو سره څه معامله وکړه؟ هغه به ووایي، چې ما پخپله هم علم زده کړ او نورو ته مې هم ورساوه او ستا لپاره به مې قرآن لوست. الله تعالی به ورته ووایي، چې دروغ وایې! تا علم د دې لپاره زده کاوه چې خلک

درته عالم وو ایي او قرآن دې د دې لپاره وایه چې خلک دې قاري وبولي، هغه درته وویل شول، بیا به دی هم د الله پاک په امر پړمخې اورته وغورځول شي.

بله فیصله به د هغه شتمن په باره کې وي چې الله جل جلاله په دنیا کې پراخ رزق او ډول ډول مالونه ورکړي وي، د ده به هم الله تعالی د ورکړل شوو ګڼو نعمتونو یادونه وکړي او هغه به اقرار وکړي چې بالکل دا ټول ما ته په دنیا کې راکړل شوي وو، بیا به الله تعالی پوښتنه ترې وکړي چې په څه کې دې ولګول؟ هغه به وو ایي چې ما هیڅ داسې ځای چې په هغه کې صدقه کول تا ته خوښ وو نه دی پرې ایښی، بلکې ستا لپاره مې پکې ستا راکړی مال صدقه کړی دی. الله به ورته وو ایي، چې درواغ وایې! تا د دې لپاره مال ورکاوه چې خلک درته سخي او جواد وو ایي او هغه درته وویل شول، بیا به دی هم په پړمخې کشولو سره اورته وغورځول شي.

**(تتمه)**

حضرت عبدالله بن عمرو رضی الله عنه روایت کوي:

قَلت: يَا رَسُولَ اللهِ أَخْبِرْنِي عَنِ الْجِهَادِ وَالْغَزْوِ؟ فَقَالَ: «يَا عَبْدَ الله بْنَ عَمْرٍو، إِنْ قَاتَلْتَ صَابِرًا مُحْتَسِبًا، بَعَثَكَ الله صَابِرًا مُحْتَسِبًا وَإِنْ قَاتَلْتَ مُرَائِيًا مُكَاثِرًا بَعَثَكَ الله مُرَائِيًا مُكَاثِرًا، يَا عَبْدَ الله بْنَ عَمْرٍو! عَلَى أَيِّ حَالٍ قَاتَلْتَ أَوْ قُتِلْتَ بَعَثَكَ الله عَلَى تِلْكَ الْحَالِ». (رواه ابو داؤد، رقم: ٢٥١٩)

ژباړه: له رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه مې د جهاد او غزا په هکله وپوښتل، نو رسول الله صلى الله عليه وسلم راته وفرمايل: اې عبد الله! که چېرې دې په صبر او له الله څخه د اجر ترلاسه کولو په نيت جهاد وکړ الله به دې صابر او محتسب را پاڅوي او که چيري دې د غنيمت تر لاسه کولو او رياء لپاره جهاد وکړ الله به دې رياء کار او غنيمت پرست راپاڅوي، اې عبد الله! په هر حال کې چې دې جهاد وکړ او په هر نيت کې چې ووژل شوې هماغسې به راپاڅول کيږې.

حضرت ابو هريره رضى الله عنه روايت کوي:

أَنَّ رَجُلًا قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ رَجُلٌ يُرِيدُ الْجِهَادَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَهُوَ يَبْتَغِي عَرَضًا مِنْ عَرَضِ الدُّنْيَا؟ فَقَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا أَجْرَ لَهُ». فَأَعْظَمَ ذَلِكَ النَّاسُ وَقَالُوا لِلرَّجُلِ: عُدْ لِرَسُولِ الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَعَلَّكَ لَمْ تُفَهِّمْهُ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ رَجُلٌ يُرِيدُ الْجِهَادَ فِي سَبِيلِ الله وَهُوَ يَبْتَغِي عَرَضًا مِنْ عَرَضِ الدُّنْيَا؟ فَقَالَ: «لَا أَجْرَ لَهُ». فَقَالُوا: لِلرَّجُلِ عُدْ لِرَسُولِ الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ لَهُ: الثَّالِثَةَ. فَقَالَ لَهُ: «لَا أَجْرَ لَهُ». (رواه ابوداود، رقم: ٢٥١٦)

ژباړه: له رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه چا پوښتنه وکړه چې يو سړى جهاد کوي خو غرض يې د نيوي غوښتنې ته د ځان رسول وي؟ رسول الله عليه الصلاة و السلام ورته وفرمايل، چې هيڅ اجر او ثواب يې نشته. په خلکو دغه خبره درنه تمامه شوه او سړي ته يې وويل: ورشه بيا پوښتنه ترې وکړه، ښايي ته به نه يې پوه شوى. هغه بيا پوښتنه وکړه، چې اې د الله رسوله! يو سړى د الله تعالى په لاره کې جهاد کوي، خو مقصد يې د دنيا يو څه لاسته راوړل وي؟ رسول الله صلى الله

علیه و سلم بیا ورته وویل، چې هیڅ اجر او ثواب یې نشته. خلکو بیا سړي ته وویل چې ته ورشه سمه پوښتنه ترې وکړه ښایي ته به سم نه یې پوه شوی. هغه دریم وار بیا پوښتنه ترې وکړه، مګر رسول الله صلی الله علیه وسلم همدا ورته وفرمایل، چې هیڅ اجر او ثواب یې نشته.

حضرت معاذ بن جبل رضی الله عنه روایت کوي:

قال رَسُولُ اللّه صَلَّى اللّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: الْغَزْوُ غَزْوَانِ؛ فَأَمَّا مَنْ ابْتَغَى وَجْهَ اللّه وَأَطَاعَ الْإِمَامَ وَأَنْفَقَ الْكَرِيمَةَ وَيَاسَرَ الشَّرِيكَ وَاجْتَنَبَ الْفَسَادَ، فَإِنَّ نَوْمَهُ وَنُبْهَهُ أَجْرٌ كُلُّهُ وَأَمَّا مَنْ غَزَا فَخْرًا وَرِيَاءً وَسُمْعَةً وَعَصَى الْإِمَامَ وَأَفْسَدَ فِي الْأَرْضِ فَإِنَّهُ لَمْ يَرْجِعْ بِالْكَفَافِ. (رواه ابوداود، رقم: ۲۵۱۵).

ژباړه: رسول الله علیه وسلم وفرمایل، چې غزاګانې دوه ډوله دي؛ هغه چې د الله د رضا لپاره وي، د امیر اطاعت پکې وشي، غوره مال پکې ولګول شي، له ملګرو سره پکې آساني او ښه ګوزاره وشي، له فساده پکې ځان وساتل شي، نو ویښه او خوب دواړه یې اجر او ثواب دی او ځوک چې د فخر او ریاء لپاره غزا کوي، د امیر اطاعت نه کوي، په ځمکه کې فساد جوړوي، د هغه هیڅ ثواب نشته.

# د نیت د اخلاص په باره کې د سلفو اقوال:

د اخلاص النیة د حقیقت په باره کې سلفو صالحینو ویلي دي: هو تصفية الفعل عن ملاحظة المخلوقين. یعني د نیت اخلاص دې ته وایي، چې د عبادت

فعل د مخلوق له ملاحظې تصفیه شي. بله معنی یې داسې کړې: هو افراد الحق سبحانه بالقصد فی الطاعة. یعني اخلاص دې ته وایي چې په عبادت کې یوازې د الله تعالی قصد وکړی شي او بس.

د اخلاص النیة په باره کې حسن بصري صاحب وایي: النیة أبلغ من العمل. یعنی نیت له عمل څخه مهم دی.

فضیل بن عیاض رحمه الله وایي: ترک العمل من أجل الناس ریاء و العمل من أجل الناس شرک والاخلاص أن یعافیک الله منهما. یعني د خلکو لپاره نیک عمل یا عبادت پریښودل ریاء ده او د خلکو لپاره ترسره کول یې شرک (خفي) دی، اخلاص دا دی چې الله تعالی دې له دې دواړو وساتي.

له حضرت سهل نه وپوښتل شول په نفس باندې کوم شی تر ټولو سخت او درووند دی؟ ده ځواب ورکړ: اخلاص پر نفس تر ټولو سخت دی، ځکه اخلاص خاص د الله لپاره عمل کولو ته وایي او په دې کې نفس ته هیڅ شی نه رسیږي.

یحی بن أبي کثیر رحمه الله وایي: تعلموا النیة فانها أبلغ من العمل. نیت زده کړئ ځکه نیت له عمل نه ډیر مهم دی.

ابراهیم التیمي رحمه الله د خپل وخت لوی ولی الله و، کله به یې په خبرو کې ځنډ وکړ او خاموش به شو، چا به چې ترې وپوښتل، ولې خبرې نه کوې؟

ویل به یې: ته صبر وکړه نیت مې نه دی برابر کړی.

میمون بن مهران رحمه الله وایي: ان اعمالکم قلیلة فأخلصوا هذا القلیل. یعنی ستاسو اعمال لږ دي، نو دا لږ اعمال په اخلاص ترسره کړئ.

عبد الرحمن بن حکم رحمه الله وایي: چې ما به سفیان ثوري صاحب لیدلو، چې د خپل وخت د لوی بزرګ عمرو بن قیس صاحب مجلس ته به راتلو او د هغه مخ ته به یې تر ډېره کتل، زما په فکر هغه په دې کتلو کې هم د ثواب نیت کاوه.

حضرت مکحول فرمایي: څوک چې تر څلویښتو ورځو پورې په عباداتو کې نیت اصلاح وساتي الله تعالی به یې له زړه څخه د حکمت چینې راپورته کړي او د ده په ژبه به یې جاري کړي.

# تقوى او اهميت يې

تقوى هم د مجاهد او بلکې د هر انسان لپاره په اسلامي ژوند کې ضروري شى دى چې الله تعالى يې په اړه فرمايي: فَاتَّقُوا اللَّهَ مَا اسْتَطَعْتُمْ وَاسْمَعُوا وَأَطِيعُوا وَأَنفِقُوا خَيْرًا لِّأَنفُسِكُمْ وَمَن يُوقَ شُحَّ نَفْسِهِ فَأُولَئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ (١٦) التغابن

ژباړه: نو له الله څخه دومره وويرېږئ څومره موچې په توان کې وي، واورئ (خبرې د رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) او اطاعت وکړئ (د حکمونو د الله جَلَّ جَلَالُهُ) او صدقه کوئ، دا خير دى ستاسو لپاره، هغه څوک چې د خپل نفس له بخيلۍ څخه وساتل شول، هغوى بريالي دي.

رښتيني تقوى له الله او د الله تعالى له عذاب څخه وېرې، د هغه د اوامرو پرځاى کولو او له نواهيو څخه په ډه کولو سره د ځان ساتني ته ويل کېږي، تقوى سراسر خير دى او په ځان کې تقوى پيدا کول وړاندنيو او وروستنيو ټولو خلکو ته د الله جل جلاله توصيه ده.

قال القرطبي: وَقَدْ جَاءَ مَنْصُوصًا عَنْهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ: «مَنْ أَحَبَّ أَنْ يَكُونَ أَكْرَمَ النَّاسِ فَلْيَتَّقِ اللهَ». وَالتَّقْوَى معناها مُرَاعَاةُ حُدُودِ اللهِ تَعَالَى أَمْرًا وَنَهْيًا وَالِاتِّصَافُ بِمَا أَمَرَكَ أَنْ تَتَّصِفَ بِهِ وَالتَّنَزُّهُ عَمَّا نَهَاكَ عَنْهُ. (تفسير قرطبي ج١٦ص٣٤٦)

لوی مفسر قرطبي رحمه الله وايي: په تحقيق سره له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه روايت شوي دي: که څوک غواړي چې عزتمن د خلکو وي نو تقوی دې خپله کړي، د تقوی معنا د الله تعالی د حدودو داسې مراعاتول دي چې په کوم شي يې امر کړی وي هغه وکړل شي، له کوم شي څخه چې يې منع کړې وي له هغو څخه ځان وساتل شي، په ځان کې هغه صفتونه پيدا کړل شي، چې الله يې د پيدا کولو امر کوي او هغه له ځانه لرې کړل شي چې الله مونږ ترې منع کړي يو.

مايصنع العبد بعزالغنى ....... والعزكل العز للمتقى

ژباړه: بنده به د غنا په عزت څه وکړي، عزت خو په ټوله کې د پرهيزګارې دی، معنی دا چې په غنا او د مال په ډېروالي کې عزت نشته ټول عزت په تقوی کې دی.

ابوبکر صديق رضي الله عنه به د خپل خلافت پر مهال هر استازي ته توصيه کوله چې: اتق الله في السر والعلن فانه من يتق الله يجعل له مخرجا ويرزقه من حيث لا يحتسب.

ژباړه: له الله تعالی څخه په پټه او ښکاره وېره کوه، ځکه څوک چې له الله جل جلاله څخه وېرېږي الله ورته له مشکلاتو د خلاصون لاره پيدا کوي او له داسې لوري روزي ورکوي چې د ده به په ګومان کې هم نه وي.

## د تقوی ګټې:

د تقوی له ګټو څخه داده چې په پرهېزګار سړي باندې د ښمن غلبه نه شي موندلای، شمس الدین السفیري د صحیح البخاري په شرح کې د عبد الله بن عمر رضي الله عنهما په احوال کې لیکلي: أنه خرج في بعض أسفاره، فبينما هو يسير إذ هو بقوم وقوف، فقال: ما لهؤلاء القوم؟ قالوا: أسد على الطريق قد أخافهم، فنزل عن دابته ثم مشى إليه حتى أخذ بأذنه، ونحاه عن الطريق، ثم قال له: ما كذب عليك رسول الله صلى الله عليه وسلم بقوله: " إنما سلطت على ابن آدم لمخافته غير الله، ولو أن ابن آدم لم يخف إلا الله تعالى لم تسلط عليه ولو لم يرج إلا الله تبارك وتعالى لما وكله إلى غيره". (ج/۱ص۴۴۱)

ژباړه: عبد الله ابن عمر رضی الله عنهما په یوه سفر ووت، یوه ډله خلک یې ولیدل چې ولاړ دي پرمخ نشي تلای، پوښتنه یې وکړه چې دې خلکو ته څه وړپېښه ده یعني ولې ولاړ دي؟ دوی ورته وویل: په لاره کې زمری دی، وېرولي یې دي.

هغه له خپلې سورلۍ ښکته شو، زمري ته ورغی هغه یې تر غوږ ونیو له لارې څخه یې ګوښه کړ او بیا یې زمري ته وویل: رسول الله صلی الله علیه وسلم ستا په هکله دروغ نه دي ویلي چې ته له دې سببه په بندګانو مسلط شوی یې چې دوی له الله تعالی پرته له بل چا هم وېرېږي، که بنی آدم له الله تعالی پرته له بل چا ونه وېرېږي، نو تا به هم الله تعالی پرې مسلط نکړي او که له الله جل جلاله پرته بل چا ته امید ونلري نو الله تعالی به یې بل چاته ونه سپاري.

د تقوی له کبله څخه د اسلامي امت اتحاد دی. الله جَلَّ جَلَالُهُ فرمايي: فاتقوا الله وأصلحوا ذات بينكم وأطيعوا الله ورسوله إن كنتم مؤمنين . [الانفال: ١]

ژباړه: د الله تعالی څخه وېرېږئ د خپل مابين اصلاح وکړئ او د الله جَلَّ جَلَالُهُ او دهغه د رسول صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اطاعت وکړئ، که چېرې تاسو مؤمنان یاست.

په تفسير منير کې ليکي: صلاح الجماعة وقوة الأمة وعزتها مرهون بأمور ثلاثة: تقوى الله في السر والعلن وإصلاح ذات البين، وطاعة الله والرسول، يعنی د اسلامي جماعت صلاح، دامت قوت او عزت په درو امورو پوري تړلي دي؛ په پټه او ښکاره تقوی، د خپل مابين اصلاح او د الله جَلَّ جَلَالُهُ او د رسول صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طاعت.

ابن ابي الدنيا له مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ څخه روايت کوي قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «رَأْسُ التَّقْوَى الصَّبْرُ وَحَقِيقَتُهُ الْعَمَلُ وَتَكْمِلَتُهُ الْوَرَعُ». (رقم١٢).

ژباړه: رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي: چې د تقوی راز صبر دی او حقيقت يې عمل دی او پوره کونکې يې پرهيزګاري ده.

قال ابو بكرالصديق رضي الله عنه في خطبته اعلموا أكيس الكيس التقوى واحمق الحمق الفجور. (البريقة ج٢ ص ٢١) حضرت ابوبکر رضي الله عنه په خپله خطبه کې ويلي دي: پوه سئ! ډېر هوښيار توب تقوی او ډېر حماقت فجور دی.

قال علي بـن أبي طالـب رضي الله عنـه: التقـوى هي الخـوف مـن الجليـل والعمل بالتنزيل والقناعة بالقليل والإستعداد ليوم الرحيل.

ژباړه: حضرت على رضى الله عنه د تقوى د معنى په اړه فرمايي: له الله تعالى څخه وېره، په قران كريم عمل، په كم مال قناعت او له دنيا د رحلت ورځې ته تياري نيولو ته تقوى وايي.

قال أبو الدرداء: (تمام التقوى أن يتقي اللهَ العبدُ، حتى يتقيه من مثقال ذرة وحتى يترك بعض ما يرى أنه حلال خشية أن يكون حرامًا، حجابًا بينه وبين الحرام).(رواه ابن مبارك فى الزهد) حضرت ابو درداء وايي: كامله تقوى داده چې بنده له الله تعالى څخه ووېرېږي حتى د يوې ذرې په مقدار له نافرماني هم ځان وساتي او حتى بعض حلال شيان يا روا كارونه هم له دې وېرې پرېږدي چې هسې نه حرام وي، ترڅو دا ډول متروك حلال د بنده او حرامو ترمنځ حجاب واقع شي.

وأبو هريرة رضى الله عنه سئل عن التقوى، قال هل أخذت طريقا ذا شوك؟ قال نعم. قال فكيف صنعت؟قال إذا رأيت الشوك عزلت عنه أوجاوزته أوقصرت عنه.قال ذاك التقوى.

ژباړه: له ابو هريره رضى الله عنه څخه د تقوى په باره كې پوښتنه وشوه، هغه پوښتنه كوونكي ته وويل: آيا په اغزنه لاركله تللى يې؟ هغه وويل هو! ابو هريرة رضى الله عنه وويل: نو په اغزنه لار دې څه كول؟ ځواب يې وركړ: چې اغزي به مې ليدل نو ځان مې ترې ساته، يا ترې تېريدلم او يا مې جامې ترې راټولولې. ابو هريرة

رضي الله عنه وويل: همدغه تقوی ده، يعني له ګناهونو همداسې ځان ساتل لکه له اغزيو چې انسان ځان ګوري.

شاعر وايي:

خل الذنوب صغيرها وكبيرها فهو التقى= واصنع كماش فوق أر ض الشوك
يحذر ما يرى= لا تحقرن صغيرة إن الجبال من الحصى

ژباړه: واړه او لوی ګناهونه پرېږده چې همدغه تقوی ده، ځان د هغه چا په شان جوړ کړه چې په اغزنه لار روان وي او چې اغزيويني ځان ترې ساتي، واړه ګناهونه واړه او کم مه بوله ځکه غرونه له کوچنيو ډبرو جوړ شوي دي.

وقال ميمون بن مهران رحمه الله: المتقي أشد محاسبة لنفسه من الشريك الشحيح لشريكه. ميمون بن مهران وايي: متقي يا پرهيزګار هغه څوک دی چې له خپل ځان سره داسې سخته محاسبه کوي چې يو بخيل شريک له بل کاروباري شريک سره هم داسې سخت حساب نه کوي.

# نیک اخــلاق

له اخلاقو څخه مراد له خپل ځان، خپل رب ، خپلې کورنۍ، نورو انسانانو او حتی حیواناتو او د الله تعالی لـه مختلف النوع مخلوقاتو سره د انسان تعامل او چلند دی ، هر مؤمن په دې مکلف دی چې د غه چلند او تعامل یې باید په هغه معیار برابر وي چې اسلام یې ورته لارښوونه کړې او رسول الله صلی الله علیه وسلم یې په خپلو عظیمو اخلاقو ورته مثال وړاندې کړی دی.

الله تعالی رسول الله صلی الله علیه وسلم ته فرمایي: وَإِنَّكَ لَعَلَى خُلُقٍ عَظِيمٍ. [القلم: ٤]ژباړه : او بې شکه ته په لویو اخلاقو مشرف یې.

حضرت عائشة رضی الله عنها د رسول الله صلی الله علیه وسلم د اخلاقو په باره کې وایي: كَانَ خُلُقُهُ الْقُرْآنَ. یعنی د هغه اخلاق هغه څه وچې په قرآن کې دي.

عن أبي هريرة رضي الله عنه قال: سئل رسول الله صلى الله عليه وسلم عن أكثر ما يدخل الناس الجنة؟ قال: تقوى الله وحسنُ الخلق وسئل عن أكثر ما يدخل الناس النار؟ فقال: الفمُ والفرجُ. (رواه الترمذي)

ژباړه: ابوهریره رضی الله عنه روایت کوي چې له رسول الله صلی الله علیه وسلم نه پوښتنه وشوه، کوم شی جنت ته د خلکو د داخلیدو ډېر سبب ګرځي؟ رسول الله مبارک وویل. تقوی او نیک اخلاق. بیا پوښتنه وشوه او جهنم ته څه شی ډېر

خلک ور دا خلوي؟ رسول الله مبارک وویل: خوله او فرج، یعني د خولې او فرج له ګناهونو ډېر خلک دوزخ ته غورځوي.

عن عبد الله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما قال: لم يكن رسول الله صلى الله عليه وسلم فاحشاً ولا مُتفحشاً وكان يقولُ: « إن من خياركم أحسنكم أخلاقاً » (متفق عليه)

عبد الله بن عمرو بن العاص وايي، چې د الله تعالی پیغمبر نه خو طبعا فاحش و او نه په تکلف سره فحش ویونکی، هغه به ویل: په تاسو کې غوره ستاسو ښه اخلاق لرونکی دی.

عن أبي امامة قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: أنا زعيم ببيت في ربض الجنة لمن ترك المراء وإن كان محقًّا وببيت في وسط الجنة لمن ترك الكذب وإن كان مازحًاوببيت في أعلى الجنة لمن حسن خلقه.(رواه ابوداود والطبرانى والبيهقى)

ابي امامة رضی الله عنه وايي، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: زه د جنت په اطراف کې د هغه چا لپاره د یوه کور ضامن یم چې جنجال پرېږدي، که څه هم دی په حقه وي او د جنت په منځ کې د هغه چا لپاره د کور ضامن یم چې دروا غ پرېږدي اګر که په ټوکه وي او د جنت په تر ټولو لوړه برخه کې د هغه چا لپاره د کور ضامن یم چې خپل اخلاق نېک کړي.

عن عائشة رضي الله عنها قالت: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: «إن الرجل ليدرك بحسن خلقه درجات قائم الليل صائم النهار. (رواه أحمد والحاكم)

ژباړه: حضرت عائشه رضی الله عنها روایت کوي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم وويل: بې شکه يو سړی په نيکو اخلاقو د هغه چا مرتبه پيدا کولای شي چې د ورځې روژه او د شپې په عبادت ولاړ وي.

## د نيکو اخلاقو په هکله د اکابرو اقوال:

عبد الله ابن عباس رضی الله عنه وايي: لكل بنيان أساس و أساس الاسلام حسن الخلق. ژباړه: دهرې ودانۍ اساس وي او د اسلام اساس نيک اخلاق دي.

عبد الله ابن مبارک رحمه الله وايي: حسن الخلق: طلاقة الوجه، وبذل المعروف، وكفُّ الأذى. ژباړه: نيک اخلاق، ورين تندی ، د نيکيو کول او له ضرر څخه لاس نيول دي.

عن أحنف بن قيس أنه قال: ألا أخبركم بأدواء الداء؟ قالوا بلى. قال: الخلق الدني واللسان البذى. احنف بن قيس وويل: آيا تر تاسو لو بد مرض درو ښيم؟ خلکو وويل هو ! ده وويل: پست يا بد اخلاق او بدګويه ژبه تر ټولو ناوړه مرضونه دي.

وقيل لعبد الله بن المبارك أجمل لنا حسن الخلق في كلمة، فقال اترك الغضب. ژباړه: عبد الله ابن مبارک رحمه الله ته چا وويل، چې نيک اخلاق په يوه کلمه کې راته خلاصه کړه، هغه ځواب ورکړ: غصه پرېږده.

قال الفضيل: لأن يصحبني فاسق حسن الخلق أحب إلي من أن يصحبني عابد سيئ الخلق. ژباړه: فضيل بن عياض رحمه الله وايي: له ما سره چې يو نېک اخلاقه فاسق ملګرى شي دا تر دې ښه ده چې يو بد اخلاقه عابد راسره ملګرى وي.

# د الله په لاره کې جــهــاد

## دالله د دین تر حاکمیته به جهاد روان وي

صحابه کرامو رضی الله عنهم له نبوي هدایاتو زده کړي وو، چې د الله جَلَّجَلَالُهُ په لاره کې جهاد د مسلمانانو د عزت یوه غټه وسیله ده، مسلمانان په اجتماعي ژوند او انفرادي زندګي کې له ذلت سپکاوي او نورو هلاکوونکو صفاتو څخه ژغوري، ځکه عزت د الله جَلَّجَلَالُهُ په دین کې دی او اصلي عزتمند مؤمنان دي د ذلت خاوندان کفار او منافقان دي.

الله تعالی فرمايي: وَلِلَّهِ الْعِزَّةُ وَلِرَسُولِهِ وَلِلْمُؤْمِنِينَ وَلَكِنَّ الْمُنَافِقِينَ لَا يَعْلَمُونَ. (المنافقون: ۸ ).

ژباړه: او عزت یوازې د الله او د هغه د رسول لپاره دی او د مومنانو لپاره دی، مګر منافقان په دې نه پوهېږي (چې عزتمن څوک او بې عزته څوک دي).

قال الله تعالی وَأَنْتُمُ الْأَعْلَوْنَ إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ (آل عمران ۱۳۹) ژباړه: تاسو به لوړ او غالب یاست که چېري تاسو مومنان واست.

تنبیه: الله جَلَّجَلَالُهُ د مؤمن بریالیتوب د ده په ایمان پورې تړلی دی، ځکه چې په انسان کې ایمان وي هر حال یې د کامیابي او عزت دی.

کله چې مسلمان جهاد پرېږدي او د اخرت پرځای په دنيا مصروف شي نو ډار، ذلت او داسې نور څه پيا ورباندې راوګرځي، لکه چې حضرت عبد الله ابن عمر رضی الله عنهما روايت کوي:

قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ الله صَلَّ الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: (إِذَا تَبَايَعْتُمْ بِالْعِينَةِ وَأَخَذْتُمْ أَذْنَابَ الْبَقَرِ وَرَضِيتُمْ بِالزَّرْعِ وَتَرَكْتُمْ الْجِهَادَ ، سَلَّطَ الله عَلَيْكُمْ ذُلًّا لَا يَنْزِعُهُ حَتَّى تَرْجِعُوا إِلَى دِينِكُمْ). (رواه ابو داؤد، رقم:٣٤٢٦)

ژباړه: وايي له رسول الله صلي الله عليه وسلم څخه مې واورېدل چې ويل يې: کله چې تاسو د (عينه) په ډول اخيستل او خرڅول پيل کړئ، په کښت کرونده بوخت شئ او جهاد ته شا کړئ، نو الله تعالی به درباندې ذلت مسلط کړي او ترهغه به په دې ذلت کې ياست ترڅو بيرته د الله تعالی دين ته راګرځئ. (عينه: هغې راکړې ورکړې ته ويل کېږي چې يو شی په لوړه بيه و پلوري او بېرته يې په کمه ترې رانيسي).

څوک چې دنيا ته مخ او جهاد ته شا کړي د هغه په اړه کې د نفاق وېره ده، لکه چې رسول الله صلي الله عليه وسلم د ابو هريرة رضی الله عنه په روايت کې فرمايي:

من مات ولم يغز ولم يحدث به نفسه مات على شعبة من نفاق. (رواه مسلم، رقم: ١٩١٠)

ژباړه: څوک چې په داسې حال کې ومري چې جهاد يې نه وي کړی او نه يې کله د جهاد اراده کړې وي، نو هغه د نفاق په يوه ډول مړ شو.

صحابه کرامو رضی الله عنهم چې جهاد کاوه نو الله تعالی هم په بدل کې نه یوائې دا چې ډول – ډول عزتونه ورباندې لورولي ول، بلکې په لویو زېرو یې هم یاد کړل، لکه چې فرمایي:

وَالَّذِينَ جَاهَدُوا فِينَا لَنَهْدِيَنَّهُمْ سُبُلَنَا وَإِنَّ اللهَ لَمَعَ الْمُحْسِنِينَ. (العنکبوت: ٦٩) ژباړه: او هغه څوک چې زموږ په لاره کې جهاد کوي نو خامخا به موږ ورته لاره وښیو او بې شکه چې الله له نیکي کوونکو سره دی.

جهاد یو همیشني عبادت دی، چې تر قیامته پوري به روان وي، نبي علیه السلام فرمایي:

عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ: «لَنْ يَبْرَحَ هَذَا الدِّينُ قَائِمًا يُقَاتِلُ عَلَيْهِ عِصَابَةٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ حَتَّى تَقُومَ السَّاعَةُ». (رواه مسلم) ژباړه: له جابر بن سمرة رضی الله عنه څخه روایت شوی، چې نبی علیه السلام وویل: دغه دین به همداسې قائم وي او د مسلمانانو یوه ډله به د قیامت تر قائمېدو پوري پرې جګړه کوي.

عمران بن حصین له نبی علیه السلام څخه روایت کوي:

عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لاَ تَزَالُ طَائِفَةٌ مِنْ أُمَّتِي يُقَاتِلُونَ عَلَى الْحَقِّ ظَاهِرِينَ عَلَى مَنْ نَاوَأَهُمْ حَتَّى يُقَاتِلَ آخِرُهُمُ الْمَسِيحَ الدَّجَّالَ». (رواه ابو داود) ژباړه: نبی صلی الله علیه وسلم فرمایلي: زما د

امت څخه یوه ډله به همېشه په حق جګړه کوي، دوی به په خپلو دښمنانو غالب وي، ترهغو چې وروستی د دوی به له دجال سره جګړه کوي.

## د في سبيل الله جهاد اهداف:

### د عقیدې ساتنه

د الله تعالی په لاره کې د جهاد له مقاصدو څخه یو د حقې عقیدې آزادي ده چې انسان ته د دنیا او اخرت له ذلت څخه خلاصون ورکوي او بل په ځمکه کې د الله د دین نفاذ دی.

لکه چې الله تعالی فرمايي: وَقَاتِلُوهُمْ حَتَّى لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ وَيَكُونَ الدِّينُ لِلَّهِ فَإِنِ انتَهَوْا فَلَا عُدْوَانَ إِلَّا عَلَى الظَّالِمِينَ (البقرة: ۱۹۳)

ژباړه: او له دوی سره وجنګېږئ ترهغو چې فتنه پاتې نشي او دین ټول د الله لپاره شي، نو که دوی منع شول، بیا هېڅ زیاتی نشته مګر په ظالمانو باندې.

د پورتني آيت د مراد په باره کې علماؤ بیلابیلې خبرې کړې دي.

قال القرطبي قال ابْنُ عَبَّاسٍ وَقَتَادَةُ وَالرَّبِيعُ وَالسُّدِّيُّ وَغَيْرُهُمْ: الْفِتْنَةُ هُنَاكَ الشِّرْكُ وَمَا تَابَعَهُ مِنْ أَذَى الْمُؤْمِنِينَ. امام قرطبي وايي، چې د ابن عباس، قتادة، سدي، الربيع او نور له فتنې څخه مراد شرک او بت پرستي یا له هغه سره تړلې د مسلمانانو ځورونه اخلي.

المراغي د دې پورته آيت په تفسير کې ليکي: وقاتلوهم حتى لا تكون لهم قوة يفتنونكم بها فى دينكم ويؤذونكم في سبيله ويمنعونكم من إظهاره والدعوة إليه، (ويكون الدين لله) أى ويكون دين كل شخص خالصا لله لا أثر لخشية غيره فيه، فلا يفتن بصده عنه ولا يؤذى فيه ولا يحتاج فيه إلى مداهنة ومحاباة أو استخفاء ومداراة، (فإن انتهوا فلا عدوان إلا على الظالمين) أي فإن انتهوا عما كانوا عليه وأسلموا، فلا تعتدوا عليهم، لأن العقوبة والعدوان إنما تكون على الظالمين تأديبا لهم، ليرجعوا عن ظلمهم.

ژباړه: مراد دادی چې له دوی سره ترهغو وجنګېږئ! ترڅو ورسره ددې زور او ځواک پاتې نه شي چې تاسو په خپل دين کې د دغه ځواک له امله په فتنه کې واچوي او تاسو ته د دين په لاره کې تکليف درکړي او تاسو د دين له ښکاره کولو او دين ته له بلنې څخه منعه کړي. (وَيَكُونَ الدِّينُ لِلَّه) يعني: چې د هرچا دين خاص د الله لپاره شي، نه د چا د وېرې اغېزه پکې وي، نه يې څوک له دين څخه په را منعه کولو په فتنه کې واچوي، نه يې د دين له امله ځوروي او نه هم په دين کې غوړه مالي، تساهل، پټوالي او مدارات ته مجبور شي. (فَإِنِ انتَهَوْا فَلَا عُدْوَانَ إِلَّا عَلَى الظَّالِمِينَ) يعني: کله چې دوی اسلام راوړي او له هغو کارونو چې پخوا يې کول لاس واخلي نو بيا ورباندې تجاوز مه کوئ؛ ځکه عقوبت او عذاب د ظالمانو لپاره وي، ترڅو دوی ته ادب وروښوول شي او له ظلمه راوګرځي.

همدا راز د الانفال په سورت کې هم الله تعالي فرمايي:

وَقَاتِلُوهُمْ حَتَّى لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ وَيَكُونَ الدِّينُ كُلُّهُ لِلَّهِ فَإِنِ انتَهَوْا فَإِنَّ اللَّهَ بِمَا يَعْمَلُونَ بَصِيرٌ. (۳۹) ژباړه: او تاسو له دوی سره وجنګېږئ تر هغه پورې چې فتنه پاتې نشي او دين ټول خاص د الله لپاره شي، نو که چېرې دوی منع شي، نو بېشکه الله په هغو عملونو چې دوی يې کوي ښه ليدونکی دی.

په المنير کې راغلي چې: شرع القتال في الإسلام للدفاع عن النفس والبلاد والأعراض والحرمات ولم يشرع للعدوان والتقتيل وسفك الدماء وكانت الغاية السامية منه إقرار حرية الدعوة إلى الدين وإعلاء كلمة الله وإعزاز دينه ونصرة شريعته وحماسة أهله ودعاته.

ژباړه: جګړه په اسلام کې د دښمنۍ، وژلو او وينې تويولو لپاره نه، بلکې له ځان، مال، هيواد او نواميسو څخه د دفاع لپاره روا شوې ده او ستر اهداف يې دين ته د بلنې ازادي، د الله تعالي د کلمې لوړتيا، د دين غلبه، د شريعت مرسته او د اهل دين او داعيانو دفاع ده.

## د شعائرو او عباداتو ساتنه

بل مقصد د جهاد د شعائرو او عباداتو ساتنه ده؛ لکه چې الله تعالی فرمايي:
ولولا دفع الناس بعضهم ببعض لهدمت صوامع وبيع وصلوات ومساجد يذكر فيها اسم الله كثيرا ولينصرن الله من ينصره ان الله لقوى عزيز. [الحج: ٤٠]

ژباړه: او که چېرې خلکو لره د الله دفع کول نه وای، ځينو لره په ځينو نورو، نو خامخا به نړول شوې وې خانقاوې او کليساوې او عبادتخانې او هغه جوماتونه چې په هغو کې د الله نوم ډېر ياديږي او الله تعالی به خامخا د هغه چا مدد وکړي چې د هغه (الله) مدد کوي، له شک پرته الله ډېر قوي او غالب دی.

نسفي وايي: أی لولا إظهاره وتسليطه المسلمين على الكافرين بالمجاهدة لا ستولى المشركون على أهل الملل المختلفة في أزمنـتهم وعلى متعبـداتهم فهـدموها ولم يتركوا للنصارى بيعاً ولا للمسلمين مساجد.

ژباړه: که چيرې د مسلمانانو غلبه په کفارو باندې په جهاد سره نه وای نو کفار به په مختلفو زمانو کې د نورو اديانو په پلويانو مسلط شوي وای او د هغوی عبادت ځايونه به يې نړولي وای، او س به نه د نصاراوو کليسا وای او نه به هم د مسلمانانو مسجدونه.

## د ځمکې له مخه د فساد ورکول

بل مقصد د جهاد د ځمکې له مخه د فساد ورکول دي؛ لکه چې الله تعالی فرمايي: «وَلَوْلا دَفْعُ اللهِ النَّاسَ بَعْضَهُمْ بِبَعْضٍ لَفَسَدَتِ الْأَرْضُ وَلَكِـنَّ اللهَ ذُو فَضْلٍ عَلَى العَالَمِينَ» (البقرة ٢٥١) ژباړه: او که چېرې نه وای دفع کول د الله خلکو

لره ځینو د دوی لره په ځینو نورو ،نو خامخا به خرابه شوې وای ځمکه،مګر الله په خلکو باندې(ډېر)مهربان دی.

المراغي د دې آیت په تفسیر کې لیکي: ای ولولا دفع الله أهل البغي والجور والشرور والآثام بأهل الإصلاح والخير، لغلب أهل الفساد وبغوا على الصالحين وأوقعوا بهم وصار لهم السلطان فى الأرض، فكان من رحمة الله لعباده وفضله عليهم، أن أذن للمصلحين بقتال البغاة المفسدين وهو سبحانه جعل أهل الحق حربا لأهل الباطل وهو ناصرهم ما نصروه وأصلحوا فى الأرض.

ژباړه: که چیرې الله جل جلاله باغیان، ظالمان د شرخاوندان او ګنهګاران د نیکانو او صالحانو په واسطه نه راګرځولای نو ظالمان به غالب شوي وای، د ځمکې پاچاهي به یې کولای او په نیکانو به مسلط وای، نو دا د الله پخپلو بندګانو باندې رحم و چې صالحانو مصلحانو ته یی له ظالمانو او مفسدینو سره د جهاد کولو اجازه ورکړه، اهل باطل یې د اهل حق په زور مات کړل او څو چې دوی د الله د دین مرسته کوي او په ځمکه کې اصلاح راولي الله به د دوی مرستندوی وي.

تفسیر منیر لیکي: بيّن الله تعالى الحكمة من القتال، فإذا كانت الحرب ظاهرة اجتماعية منذ أن اقتتل أبناء آدم، فقتل قابيل هابيل ولا تخلو من ضرر وخطر، فإنها لا تخلو أيضا من نفع وخير، فلولا دفع الله أهل البغي والشر بأهل العدل والإصلاح والخير وتسليط جماعة على أخرى، لغلب أهل الفساد وفسدت الأرض وعمت الفوضى وساد الظلم وهدّمت أماكن العبادة لذكر الله ولكن

الله ذو فضل كبير على الناس جميعا وذو رحمة بهم، حيث يسلط على الظالم من يهلكه ويدحر أهل الباطل بجند الحق، فإذا ظهر ظالم آخر، أرسل الله له في الوقت المناسب من يخلص الناس منه وهكذا ينصر الله رسله بالغيب ويؤيد أعوانه في اللحظة الحاسمة التي يريدها.

ژباړه: په پورتني پاک ارشاد کې الله تعالی د جګړې حکمت بیان کړی، چې جګړه له هغه مهال راهیسې یوه تولنیزه پدیده ده، چې د حضرت ادم علیه السلام زوی قابل خپل ورور هابل وواژه، جګړه که له یوې خوا ضررونه او خطرونه لري، نو له بلې خوا بیا له خیر او ښېګڼې څخه هم خالي نه ده، که چیرې د مفسدینو او باغیانو دفاع په صالحانو عادلانو نه وای شوې او ځینې په ځینو نورو باندې په جګړه غالب شوي نه وای، نو بیا به فساد جوړوونکي برلاسي وای، ځمکه به له فساده ډکه، ګډوډي به عامه او هر لورته به ظلم – ظلم وای، د عبادت ځایونه به وران وای، مګر الله په ټولو انسانانو مهربان دی، ځکه په ظالم باندې هغه څوک مسلط کوي، چې دغه ظالم هلاک کړي او اهل باطل د حق په لښکرو ماتوي، کله چې بل ظالم سر راپورته کړي، نو الله تعالی په مناسب وخت کې داسې څوک ورته را ولیږي، چې خلک له دغه ظالم څخه خلاص کړي او همدا ډول الله تعالی په غیب سره د خپلو رسولانو نصرت کوي او په سخته شېبه کې د خپلو پیروانو تائید کوي.

## دمؤمنانو آزموینه

بل مقصد له جهاده دادی چې الله تعالی په جهاد باندې مؤمنان ازمويي؛ لکه چې الله تعالی فرمايي: أَمْ حَسِبْتُمْ أَن تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ وَلَمَّا يَعْلَمِ اللهُ الَّذِينَ جَاهَدُوا مِنكُمْ وَيَعْلَمَ الصَّابِرِينَ (آل عمران: ۱۴۲)

ژباړه: ايا تاسو دا ګومان کوئ چې تاسو به جنت ته داخل شئ، حال دا چې لا تر اوسه الله تعالی په تاسو کې هغه کسان نه دي معلوم (څرګند) کړي چې جهاد يې کړی. (يعني: تر هغه به جنت ته داخل نشئ تر څو د الله تعالی له لوري په بيلا بيلو ازموينښتونو ونه ازمايل شئ او الله له تاسو نه خلکو ته هغه څوک په ډاګه نه کړي چې د الله په لاره کې جهاد کوي او له دښمن سره په مقابله صبر کوي).

## د کفارو ويرول

بل مقصد له جهاده د کفارو ويرول دي؛ لکه الله تعالی چې فرمايي: وَأَعِدُّوا لَهُم مَّا اسْتَطَعْتُم مِّن قُوَّةٍ وَمِن رِّبَاطِ الْخَيْلِ تُرْهِبُونَ بِهِ عَدُوَّ اللهِ وَعَدُوَّكُمْ وَآخَرِينَ مِن دُونِهِمْ لَا تَعْلَمُونَهُمُ اللهُ يَعْلَمُهُمْ وَمَا تُنْفِقُوا مِنْ شَيْءٍ فِي سَبِيلِ اللهِ يُوَفَّ إِلَيْكُمْ وَأَنْتُمْ لَا تُظْلَمُونَ. (الانفال: ٦٠)

ژباړه: او (اې مسلمانانو!) تاسو (د عدد او عدت دواړو په اعتبار) قوت او تړلي آسونه تيار کړئ څومره چې استطاعت لرئ، په دې سره به تاسو د الله دښمنان

او خپل د ښمنان وېروئ او له دوی نه سوا نور خلق (هم) چې تاسو هغوی نه پېژنئ (یعني تراوسه يې له تاسو سره د ښمني نه ده په ډاګه کړې) الله يې پېژني او تاسو چې د الله په لاره کې څه شی هم خرچ کوئ، تاسو ته به پوره (بدله) درکړل شي او په تاسو به ظلم نه کېږي.

## د مسلمانانو د زړونو خوشحالي

بل مقصد له جهاده د مسلمانانو خوشحالي او د زړو شفا ده؛ لکه چې الله تعالی فرمايي: (قَاتِلُوهُمْ يُعَذِّبْهُمُ اللهُ بِأَيْدِيكُمْ وَيُخْزِهِمْ وَيَنصُرْكُمْ عَلَيْهِمْ وَيَشْفِ صُدُورَ قَوْمٍ مُّؤْمِنِينَ * وَيُذْهِبْ غَيْظَ قُلُوبِهِمْ وَيَتُوبُ اللهُ عَلَى مَن يَشَاءُ وَاللهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ). [التوبة: ١٤-١٥]

ژباړه: اې مسلمانانو! د الله تعالی له دښمنانو سره وجنګېږئ، الله به دوی ته ستاسو په لاسونو عذاب ورکړي او دوی به رسوا کړي، د دوی په مقابل کې به ستاسو مرسته وکړي او (په دې سره به) د مؤمنانو سینو ته شفا ورکړي او د هغوی (مسلمانانو) د زړونو غوسه به يوسي او چاته چې د الله تعالی خوښه شي توبه به يې قبوله کړي، الله تعالی علیم او د حکمت څښتن دی.

## د کفارو د دښمنۍ دفع او د مظلومو خلاصون

د جهاد بل مقصد د کفارو دښمني دفع کول او د دوی له ظلمه څخه د کمزورو مسلمانانو ژغورل دي؛ لکه چې الله تعالی فرمايي: وَمَا لَكُمْ لَا تُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللهِ وَالْمُسْتَضْعَفِينَ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ وَالْوِلْدَانِ الَّذِينَ يَقُولُونَ رَبَّنَاأَخْرِجْنَا مِنْ هذِهِ الْقَرْيَةِ الظَّالِمِ أَهْلُهَا وَاجْعَلْ لَنَا مِنْ لَدُنْكَ وَلِيًّا وَاجْعَلْ لَنَا مِنْ لَدُنْكَ نَصِيرًا [النساء: ٧٥].

ژباړه: او په تاسو څه شوي دي چې د الله په لاره او د کمزورو سړيو، ښځو او ماشومانو (په خلاصولو) کې، نه جنګېږئ هغه چې وايي: اې زمونږه ربه! ته مونږه له دې کلي نه وباسه چې اوسېدونکي يې ظالمان دي او ته زمونږ لپاره له خپله لوري کوم دوست مقرر کړه او ته زمونږ لپاره له خپل جانبه کوم مدد کوونکی وټاکه.

په حجة الله البالغه کې راځي: فالرحمة التامة الكاملة بالنسبة إلى البشر أن يهديهم الله إلى الاحسان وأن يكبح ظالمهم عن الظلم وأن يصلح ارتفاقاتهم وتدبير منزلهم وسياسة مدينتهم، فالمدن الفاسدة التي يغلب عليها نفوس السبعية ويكون لهم تمنع شديد إنما هو بمنزلة الأكلة في بدن الإنسان لا يصح الإنسان إلا بقطعه والذي يتوجه إلى إصلاح مزاجه وإقامة طبيعته لا بد له من القطع والشر القليل إذا كان مفضيا إلى الخير الكثير واجب فعله. (ج٢ ص٢٦٤)

ژباړه: په بشر باندې د الله تعالی بشپړ رحمت دادی چې د احسان لوري ته یې رهنمایي کړي، د ظالم لاس یې له ظلم څخه لنډ کړي او ټولنه یې د دوی په عدالت، سالم سیاست او مصالحو باندې اصلاح کړې ده؛ ځکه هغه فاسد ښارونه چې وحشي انسانان پرې واکمن او هغوی لره سخت قوت وي داسې مثال لري لکه په بدن کې لاعلاجه دانه چې انسان د هغې له پرېکولو پرته نه روغېږي، هغه څه چې په پرې کولو سره یې د مزاج اصلاح راځي او طبیعت روغوي هغه باید خامخا غوڅه شي او کله چې له لږ شر څخه ډېر خیر موندل کیږي هغه کار واجب دی چې ترسره شي.

نو له پورتنیو آیتونو او د علماوو له وینااوو څخه داسې معلومیږي چې له جهاد کولو څخه مقصد د اسلامي عقیدې ساتنه، له فساد څخه د انسانانو ژغورل او د الله تعالی احکام په ځمکه جاري کول دي، نو که په هیواد کې روان جهاد چې له کفارو او د هغوی له مزدورانو سره پیل شوی، یوازې د کفارو په وتلو پوري وتړل شي او څوک داسې وایي چې د کفارو تر وتلو سمدستي دې جهاد ته د پای ټکی کېښوول شي که څه هم له دوی څخه پېښ او خپور فساد همداسې روان وي، نو دا غلطه ده، ځکه چې په دې سره به جهاد بلا هدفه وګرځي او یرغلګر همدا غواړي چې د جهاد په لاره کې د افغانانو ټول کوښښونه بې ثمرې ثابت کړي او دا یقیني ده چې که د دوی ټول مفاسد له بېخه ونه ایستل شي، نو دوی به هر وخت چې حالات سازګار وویني یو وار بیا ضرور زموږ خاورې ته راځي، نو مجاهدین باید د دوی په خبرو دوکه نشي او تر هغه پورې خپل مقدس جهاد ته دوام ورکړي تر څو د فساد

جرړه ختمېږي او په ځمکه يو ائې د الله دين حاکم کړئي، ترڅو د دوی دا بې شمېره قربانۍ بې نتېجې پاته نشي.

# د مسلمانانو د نصرت او بري لاملونه

مجاهدین باید هغه لارې چارې خپلې کړي، چې د دوی د نصرت او فتحې لامل شي، الله تعالی فرمایي: يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنْ تَنْصُرُوا الله يَنْصُرْكُمْ وَيُثَبِّتْ أَقْدَامَكُمْ. [محمد: ۷].

ژباړه: اې هغو کسانو، چې تاسو ایمان راوړی (اې مومنانو) که تاسو د الله تعالی نصرت وکړئ، نو الله تعالی به ستاسو نصرت وکړي او تاسو به (د دښمنانو په وړاندې) ثابت قدمه کړي.

په دغه آیت کې الله تعالی ټولو مومنانو ته خطاب کوي، چې که تاسو د الله تعالی نصرت وکړئ، الله تعالی به ستاسو نصرت وکړي، د الله تعالی نصرت دا دی، چې د الله تعالی د شریعت پیروي وشي او د دین نصرت یې وشي، نو الله تعالی به مسلمانان په دښمنانو غالب کړي، الله تعالی فرمایي: إِن يَنصُرْكُمُ الله فَلَا غَالِبَ لَكُمْ. یعني که الله تعالي ستاسو (مومنانو) نصرت وکړي، بیا به په تاسو باندې هیڅوک غالب نشي.

الله تعالی فرمايي: وَإِنْ تَصْبِرُوا وَتَتَّقُوا لا يَضُرُّكُمْ كَيْدُهُمْ شَيْئًا إِنَّ الله بِمَا يَعْمَلُونَ مُحِيطٌ [آل عمران: ۱۲۰]

یعنې که تاسو (اې مومنانو!) صبر وکړئ او تقوا اختیار کړئ، نو بیا به د هغوی (کافرانو) هیڅ فریب زیان درته ونه رسوي، الله تعالی په هر هغه څه چې هغوی یې کوي احاطه کوونکی دی.

تفسیر طبري وایي: اې مومنانو !که تاسو د الله تعالی په طاعت صبرو کړئ او په هغه څه کې چې امریې درته پرې کړی د امر پیروي وکړئ او له هر هغه څه څخه چې تاسو یې ور څخه منعه کړي یاست پرهیز وکړئ او له الله تعالی وویرېږئ، نو بیا به تاسو ته د هغوی فریب او مکر زیان ونه رسوي، یعنی الله تعالی به مو د هغوی له مکر او د فریب له زیان څخه وساتي او تاسو به بریالی یاست.

## دنده او مشري يو امانت دی:

محترمو مجاهدینو ! هرهغه څوک چې امام یې د کوم کار لپاره وټاکي هغه په همدې کار کې امین دی او پرې لازمه ده چې پوره حق یې اداء کړي؛ لکه چې الله جل جلاله فرمايي: إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُكُمْ أَنْ تُؤَدُّوا الْأَمَانَاتِ إِلَى أَهْلِهَا وَإِذَا حَكَمْتُمْ بَيْنَ النَّاسِ أَنْ تَحْكُمُوا بِالْعَدْلِ إِنَّ اللَّهَ نِعِمَّا يَعِظُكُمْ بِهِ إِنَّ اللَّهَ كَانَ سَمِيعًا بَصِيرًا. [النساء:۵۸]

ژباړه: بېشکه الله تعالی تاسو ته د دې حکم کوي چې امانتونه خپلو حقدارو ته وسپارئ او دا چې کله تاسو د خلقو په مینځ کې فیصله کوئ، (نو) په انصاف سره یې کوئ، بېشکه الله تعالی تاسو ته ډېر ښه نصیحت کوي، بېشکه الله ښه اورېدونکی، ښه لیدونکی دی.

قرطبی لیکي، چې له آیت شریف څخه څرګندیږي چې دا حکم عام او د هر هغه چا لپاره دی چې امانات ورسپارل شوي وي، یا اموال ویشي او یا د مظلوم حق له ظالم څخه اخلي.

امام طبري هم داسې وايي: په دې کې هغه کسان هم راځي چا ته چې امانات سپارل شوي وي یا شاهدي ورپه غاړه وي یا داسې نور، همدارنګه لمونځ، زکات او ټول عبادات هم د الله جل جلاله امانات دي.

همدغه معنی په یوه مرفوع حدیث کې داسې راغلې ده: عَنْ عَبْدِ اللَّه بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّه عَنْهُمَا أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّه صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ كُلُّكُمْ رَاعٍ وَمَسْئُولٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ فَالْإِمَامُ رَاعٍ وَهُوَ مَسْئُولٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ وَالرَّجُلُ فِي أَهْلِهِ رَاعٍ وَهُوَ مَسْئُولٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ وَالْمَرْأَةُ فِي بَيْتِ زَوْجِهَا رَاعِيَةٌ وَهِيَ مَسْئُولَةٌ عَنْ رَعِيَّتِهَا وَالْخَادِمُ فِي مَالِ سَيِّدِهِ رَاعٍ وَهُوَ مَسْئُولٌ عَنْ رَعِيَّتِه. (بخاري، رقم:٥١٨٨)

ژباړه: هر یو ستاسې شپون دی او د خپل رعیت پوښتنه به ترې کېږي، امام شپون دی د رعیت په اړه به پوښتنه ترې کېږي، سړی د خپل اهل شپون دی د اهل په باره کې به پوښتنه ترې کېږي، ښځه د مېړه په کور کې شپنه ده او د خپل کور او څه چې په دې کور کې دي د هغو په اړه به ترې پوښتنه کېږي، خادم د خپل بادار په مال کې شپون دی او په دې اړه به ترې پوښتنه کېږي.

حضرت ابوذر رضی الله عنه فرمايي: قلت: يارسول الله! الا تستعملني؟ قال فضرب بيده منكبي ثم قال: يا أبا ذر! إنك رجل ضعيف وإنها أمانة وإنها يوم القيامة خزي وندامة الا من اخذها بحقها و ادى الذي عليه فيها. (مسلم، رقم:١٨٢٥)

ژباړه: حضرت ابوذر رضی الله عنه وايي، چې ما رسول الله صلی الله علیه وسلم ته وويل: ما په پلاني ځای نه مقرروې؟ هغه زما په اوږه لاس کېښود او راته

ویې ویل: ابوذره! ته کمزوری یې او وظیفه امانت او د قیامت د ورځې رسوایي او پښېماني ده، مګر د هغه چا لپاره نه چې په سمه ول یې سمبال کړه او د وظیفې حق یې هغسې اداء کړ، څنګه چې په ده لازم و.

بل ځای ورته فرمایي: « يا أبا ذر أني أراك ضعيفا وإني أحب لك ما أحب لنفسي لا تأمرن على اثنين ولا تولين مال يتيم». (مسلم، رقم:١٨٢٦).

ژباړه: ابوذره! ته ما ته کمزوری معلومیږې او زه تا ته هغه څه خوښوم چې د ځان لپاره مې خوښ وي، په دوو کسانو هم مه امیر کېږه او د یتیم د مال سرپرستي په غاړه مه اخله.

دا یوه ستره قاعده ده چې سړی باید له امیر جوړېدو څخه ځان وساتي خصوصا هغه چې کمزوری وي.

پورته بیان شوې رسوایي او پښېماني د هغه چا لپاره ده چې د امیر کېدلو اهل نه وي، یا خو اهل وي مګر عدل پکې نه چلوي، خو څوک چې د ولایت او امارت اهل هم وي او عدالت هم پکې وکړي هغه بیا د سترې مرتبې خاوند دی.

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «إِنَّكُمْ سَتَحْرِصُونَ عَلَى الْإِمَارَةِ وَسَتَكُونُ نَدَامَةً يَوْمَ القِيَامَةِ، فَنِعْمَ المُرْضِعَةُ وَبِئْسَتِ الفَاطِمَةُ». (البخاري، رقم: ٧١٤٨)

ژباړه: ابوهريره رضی الله عنه وايي، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: تاسو به د امارت ډېر خواهش کوئ، خو هغه به د قيامت په ورځ پښېماني وي، ښه ده تی ورکوونکې او بده ده له تي جلاکوونکې.

پښېماني به د هغه چا لپاره وي چې د امارت پر مهال يې هغسې چلند نه وي کړی څنګه چې پکار و «ښه وي تی ورکوونکې» له دې څخه مراد د امارت د پيل شېبې ورځې او حال احوال دی، ځکه چې مال، دولت، مرتبه او خوندونه وي او «بده وي له تي جلاکوونکې» له دې څخه مراد بيا د امارت پای دی، ځکه چې کله قتل وي، کله معزولېدل وي او په دې برسېره په قيامت کې ورڅخه پوښتنه هم کيږي.

خو هغه څوک چې د امير کېدلو اهل وي، د هغه حق اداء کړي، عدل پکې هېر نکړي، نو د هغه لپاره به داسې ستر فضل او لوی ثواب وي چې د اويا کلونو تر عبادت به غوره وي، لکه رسول الله عليه السلام يې چې په اړه فرمايي، د زهير رضی الله عنه روايت دی: « إنَّ المُقْسِطِينَ عند الله على مَنَابِرَ من نُورٍ عن يَمِينِ الرَّحْمنِ وكِلْتَا يَدَيْهِ يَمِينٌ الَّذينَ يَعْدِلُونَ فِي حُكْمِهِمْ وأَهْلِيهمْ وَمَا وَلُوا». (رواه مسلم، رقم: ۱۸۲۷)

ژباړه: حضرت زهير رضی الله عنه وايي، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: عادل حاکمان به د قيامت په ورځ د الله تعالی ښي اړخ ته د نور په منبرونو ناست وي – د الله دواړه اړخه ښي دي – دا به هغه کسان وي چې په خپل حکومت، خپل اهل او عيال او رعيت کې يې عدل کړی وي.

قاضي عياض رحمه الله د دغه حديث په بيان کې وايي: اى «الذين يعدلون فى حكمهم وأهليهم وما ولوا» فدل هذا الفضل لكل من عدل فيما تقلده من خلافة وإمارة أو ولاية يتيم أو صدقة أو غير ذلك أو فيما يلزمه من حقوق أهله أو من يقوم به.

قوله: «على منابر من نور» أصل تسمية المنبر لارتفاعه فيحتمل أن يكون منابر كما ذكر على وجهها أو منازل رفيعة وأماكن علية كما جاء فى الحديث الآخر: «يجىء يوم القيامة على تل وفى آخر، على كوم».

وقوله: «عن يمين الرحمن» معناه: فى الحالة الحسنة والمنزلة الرفيعة، قال ابن عرفة، يقال: أتاه عن يمينه إذا أتاه من الجهة المحمودة والعرب تنسب الفعل المحمود والإحسان إلى اليمين وضده اليسار، قالوا: واليمين من اليمن وتسمى اليمين وتسمى الشمال الشؤمى من الشؤم، اه. (اكمال المعلم ج٦ص ٢٢٧)

ژباړه: "يعني هغه څوک چې په حکم، خپل اهل او هغه څه کې چې ده ته په واک کې ورکول سوي وي عدل کوي "نو دغه حديث دلالت کوي، چې دغه فضل او رتبه هر هغه کس لره ده چې په هر هغه څه کې عدل کوي چې دی پکې مقرر سوی وي خلافت وي، که امارت، ولايت وي که د يتيم مال او که صدقات وي او يا داسې نور او هغه چې پر ده لازم وي لکه حقوق د اهل دده او هغه چې ده ته په واک کې ورکول سوي وي.

د «على مَنَابِرَ من نُورٍ» څخه مراد يا خو دا چې حقيقي منبرونه او يا لوړ ځايونه دي چې په دې حديث شريف کې يې هم يادونه شوې ده: «يجىء يوم القيامة على .....

د (يَمينِ الرَّحْمنِ) د الله له ښي لوري څخه مراد دا چې د ښه حال خاوند به وي او ستره

مرتبه به يې په برخه وي، ابن عرفه رحمه الله وايي، هغه مهال چې يو څوک له ښه (ستايل شوي) لوري څخه راشي، نو هغه ته ويل کيږي چې له ښي لوري راغی، عربان هرښه شي ته يمين وايي، چې ضد يې يسار دی يمين له يُمن څخه اخيستل شوی او مبارک ته ويل کيږي، لکه شمال چې له شوم څخه اخستل شوی او بد شامتي ته وايي.

وَقَالَ عَبْدُاللهِ بْنُ مَسْعُودٍ:لَأَنْ أَقْضِيَ يَوْمًاأَحَبُّ إِلَيَّ مِنْ عِبَادَةِ سَبْعِينَ سَنَةً. وَمُرَادُهُ أَنَّهُ إِذَا قَضَى يَوْمًا بِالْحَقِّ كَانَ أَفْضَلَ مِنْ عِبَادَةِ سَبْعِينَ سَنَةً، فَكَذَلِكَ كَانَ الْعَدْلُ بَيْنَ النَّاسِ مِنْ أَفْضَلِ أَعْمَالِ الْبِرِّ وَأَعْلَى دَرَجَاتِ الْأَجْرِ، قَالَ اللهُ تَعَالَى: وَإِنْ حَكَمْتَ فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ بِالْقِسْطِ إِنَّ اللهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِينَ. (المائدة: ٤٢) فَأَيُّ شَيْءٍ أَشْرَفُ مِنْ مَحَبَّةِ اللهِ تَعَالَى. (معين الحكام ص٨)

په معين الحکام کې راغلي چې عبد الله ابن مسعود رضی الله عنه فرمايي: زه چې يوه ورځ قضاء وکړم دا راته له اويا کلونو عبادت څخه غوره دی، له دې څخه مراد هره قضا نه، بلکې په حق سره قضاء ده.

دغه رنګه د خلکو تر منځ عدل کول هم له لويو نېکيو څخه يوه ده او ترسره کوونکي ته به يې الله تعالی لوی درجات ورکوي؛ لکه چې د مائدې په سورت کې الله پاک فرمايي: وَإِنْ حَكَمْتَ فَاحْكُم بَيْنَهُم بِالْقِسْطِ إِنَّ اللهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِينَ [المائدة :٤٢]

ژباړه: او که چېرې ته (د نورو ترمنځ) فيصله کوې، نو د دوی تر مينځ په انصاف سره فيصله وکړه، بېشکه الله تعالی له انصاف کوونکو سره مينه کوي، (نو کوم شی د الله جَلَّجَلَالُهُ تر ميني غوره دی)

تنبيه: هيڅ ته نه ښايي چې په خپله خوله امارت وغواړي او يا په زړه کې دا مينه وساتي چې کاشکې امارت ورکړل شوی وای، ځکه دا کار په شريعت کې منع دی، خو که دداسې لپاره يې غواړي چې د خلکو ترمنځ اصلاح راولي او عدل قائم کړي، نو بيا روا دی، مګر زموږ او ستاسو په زمانه کې د يوسف علی نبينا وعليه السلام په شان يو څوک پيدا کېدل ډير شاذ او نادر دي، ځکه نو بايد له داسې کړنې ځان وساتل شي، يوسف عليه السلام چې په خپله خوله د دندې غوښتنه کړې وه، هغه پوهيده، چې دغه دنده بل څوک په دغه ډول نشي ترسره کولای، دی پوهيده، چې اصلاح راوستلی او عدل قائمولی شي).

عبدالرحمن ابن سمرة رضی الله عنه فرمايي: قَالَ لِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «يَا عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ سَمُرَةَ، لَا تَسْأَلِ الْإِمَارَةَ، فَإِنَّكَ إِنْ أُعْطِيتَهَا عَنْ مَسْأَلَةٍ وُكِلْتَ إِلَيْهَا وَإِنْ أُعْطِيتَهَا عَنْ غَيْرِ مَسْأَلَةٍ أُعِنْتَ عَلَيْهَا(مسلم، رقم: ١٦٥٢)

ژباړه: حضرت عبدالرحمن ابن سمرة رضی الله عنه وايي، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم راته وويل: اې عبد الرحمانه! د امارت غوښتنه مه کوه، ځکه چې که ستا په غوښتنه درکړل شي نو ته به ورته وسپارل شې او که له غوښتنې پرته درکړل شي بيا به الله درسره مرسته کوي چې سرته يې ورسوې.

همدارنګه ابوبکر صديق رضی الله عنه وايي: والله ما كنت حريصا على الإمارة يوما ولا ليلة قط ولا كنت فيها راغبا ولا سألتها الله في سر ولا علانية ولكني أشفقت من الفتنة وما لي في الإمارة من راحة ولكني قلدت أمرا

عظيما ما لي به طاقة ولا يـد إلا بتقويـة الله عـز وجـل، (كـنز العمـال، رقـم: ١٤٠٦٠) و كذا نقل عن عمر رضي الله عنه مثل ذلک.

ژباړه: زما دې په خپل رب قسم وي چې د يوې شپې او يا يوې ورځې لپاره هم په امارت حريص نه يم، (د دې حرص راسره نشته چې په مشرۍ دې پاتـه يم) او نه ورسره مينه لرم، او يا به مې له الله تعالى څخه په پټه يا ښکاره د دې طلب کړی وي، لکن قبول مې له دې وجهي کړ، چې له فتنې څخه ېريدم، ماته په مشرۍ او امارت کې هيڅ راحت او سوکالي نشته، خو په داسې غټ کار مقرر سوم چې ما لره پرې هيڅ قدرت او برلاسی د الله جَلَّجَلَالُهُ له مرستې پرته نشته او له عمر رضی الله عنه څخه هم دغسې روايت شوی دی.

په البدايه و النهايه کې وايي: لما ولى عمر بن عبـد العزيـز الخلافـة جـاءه صاحب الشرطة ليسير بين يديه بالحربة على عادته مع الخلفـاء قبلـه، فقـال له عمر: ما لي ولك؟ تنح عني، إنما أنا رجل من المسلمين. ثـم سـار وسـاروا معـه حتى دخل المسجد، فصعد المنبر واجتمع النَّاس إليه فقال: أَيُّهَـا النَّـاسُ! إِنِّي قـد ابتليت بهذا الأمر عـن غـير رأي كان مـني فيـه ولا طلبـة له ولا مشـورة مـن المسلمين وإني قد خلعـت مـا في أعنـاقكم مـن بيعـتي فاختـاروا لأنفسـكم ولأمركم من تريدون، فصاح المسلمون صـيحة واحـدة: قـد اخترنـاك لأنفسـنا وأمرنا ورضينا كلنا بك.

فلما هدأت أصواتهم حمد الله وأثنى عليـه وقـال: أوصـيكم بتقـوى الله، فإن تقوى الله خلف من كل شئ وليس من تقوى الله خلف و أكثروا من ذكـر

الموت فإنه هادم اللذات وأحسنوا الاستعداد له قبل نزوله وإن هذه الأمة لم تختلف في ربها ولا في كتابها ولا في نبيها وإنما اختلفوا في الدينار والدرهم وإنِّي والله لا أعطي أحداً باطلاً ولا أمنع أحداً حقاً، ثم رفع صوته فقال: أيها الناس! من أطاع الله وجبت طاعته ومن عصى الله فلا طاعة له أطيعوني ما أطعت الله، فإذا عصيت الله فلا طاعة لي عليكم.( ج۹ ص۲۳۸)

ژباړه: کله چې عمربن عبدالعزیز خلیفه شونو دحفاظتي ځواکونو مشر ورته راغی او غوښتل یې ده ته هم د حفاظت لپاره د داسې ساتندوی ګارډ انتظام وکړي څنګه چې به د نورو خلفاؤ ترمخ روان وو. عمر بن عبدالعزیز ورته ویل زما او د دې کار یې سره څه؟! لرې شه زما څخه! زه هم د مسلمانانو څخه یو تن یم! بیا روان شو مسجد ته ننوت، منبر ته وخوت، خلک ورته راغونډ شول او داسې خطبه یې وفرمایله:

اې خلکو! ما ته د غه ابتلاء داسې راکړل شوې ده چې زما رایه پکې نه ده اخستل شوې، نه ما غوښتنه کړې او نه هم له مسلمانانو سره مشوره شوې ده، ستاسو په غاړو کې چې زما کوم بیعت و له هغه څخه مې خلاص کړي یاست، هر څوک چې خلیفه ټاکئ ستاسو خوښه ده، مسلمانانو په یوه غږ چیغه کړه چې موږ د خلافت لپاره ته غوره کړی یې او زموږ ټولو ستا خلافت خوښ دی.

کله چې د خلکو ګڼه ګوڼه کمه او ځوږ کرار شو نو هغه د الله تعالی حمد او ثنا وویله او بیا یې وفرمایل: اې خلکو! تاسو ته د تقوی توصیه کوم، تقوی د هر څه بدل کېدلی شي، خو هیڅ شی د تقوا بدل نشي کېدلی (دا شونې ده، چې تقوی د هر څه جبیره شي، خو که تقوی له منځه ولاړه هیڅ شی یې عوض نشي کېدلی) مرګ ډېر یاد وئ، ځکه چې

مرګ لذتونه هیروي، پخوا تر دې چې مرګ در ته راشي هغه ته تیاری و کړئ، د غه امت نه د الله تعالی په هکله اختلاف لري، نه د پیغمبر په هکله او نه د الله تعالی د کتاب په هکله، بلکې د وی چې پرې اختلاف کوي هغه درهم او دینار دی.

زما دې په الله قسم وي، چې نه به هیچا ته ناحقه څه ورکوم او نه به له هیچا څخه د ده حق ګرځوم، بیا یې خپل غږ اوچت کړ او ویې ویل: اې خلکو! څوک چې د الله اطاعت کوي د هغه د خبرې منل واجب دي، نو تر څو چې زه د الله اطاعت کوم تاسو زما خبره منئ او کله چې زه له الله څخه سرغړونه او عصیان پیل کړم نو بیا پر تاسو زما هیڅ اطاعت نشته.

## د دندو د حرص زیانونه:

پوه شه چې د دندو مینه او حرص ډېر فسادونه لري چې علماوو پخپلو کتابونو کې لیکلي دي:

(۱) یو دا چې له عدل څخه محرومیت راځي؛ لکه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: لا یحرص فی الامارة فعدل فیها. یعني: یو څوک چې د مشرۍ په ترلاسه کولو کې حرص کوي، هغه عدل نشي کولای.

همدغه مطلب له حضرت عمر رضی الله عنه څخه په کنز العمال کې رانقل شوی دی: عن عمر قال: ماحرص رجل کل الحرص في الامارة فعدل فیها. (کنز العمال، رقم: ١٤٢٩٥) یعنی: یو څوک چې د امارت او مشرۍ په ترلاسه کولو کې ډېر حرص کوي هغه عدل نشي کولای.

(۲) دا چې د الله تعالى له مرستې څخه به محروم وي؛ لکه د عبد الرحمن بن سمرة رضی الله عنه په حديث کې چې تېر شو، ابن حجر رحمه الله د عبد الرحمن ابن سمره رضی الله عنه د حديث په شرح کې ليکي: أَنَّ مَنْ طَلَبَ الْإِمَارَةَ فَأُعْطِيَهَا تُرِكَتْ إِعَانَتُهُ عَلَيْهَا مِنْ أَجْلِ حِرْصِهِ وَيُسْتَفَادُ مِنْهُ أَنَّ طَلَبَ مَا يَتَعَلَّقُ بِالْحُكْمِ مَكْرُوهٌ، فَيَدْخُلُ فِي الْإِمَارَةِ الْقَضَاءُ وَالْحِسْبَةُ وَنَحْوُ ذَلِكَ وَأَنَّ مَنْ حَرَصَ عَلَى ذَلِكَ لَا يُعَانُ، فَإِنَّ مَنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ مِنَ اللهِ عَوْنٌ عَلَى عَمَلِهِ لَا يَكُونُ فِيهِ كِفَايَةٌ لِذَلِكَ الْعَمَلِ، فَلَا يَنْبَغِي أَنْ يُجَابَ سُؤَالُهُ وَمِنَ الْمَعْلُومِ أَنَّ كُلَّ وِلَايَةٍ لَا تَخْلُو مِنَ الْمَشَقَّةِ، فَمَنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ مِنَ اللهِ إِعَانَةٌ، تَوَرَّطَ فِيمَا دَخَلَ فِيهِ وَخَسِرَ دُنْيَاهُ وَعُقْبَاهُ، فَمَنْ كَانَ ذَا عَقْلٍ لَمْ يَتَعَرَّضْ لِلطَّلَبِ أَصْلًا، بَلْ إِذَا كَانَ كَافِيًا وَأُعْطِيَهَا مِنْ غَيْرِ مَسْأَلَةٍ، فَقَدْ وَعَدَهُ الصَّادِقُ بِالْإِعَانَةِ وَلَا يَخْفَى مَا فِي ذَلِكَ مِنَ الْفَضْلِ.

ژباړه: څوک چې په خپله خوله وظيفه غواړي او ورکول شي، نو په دې دنده کې مرسته ورسره نه کيږي، ځکه چې په حرص يې ترلاسه کړې ده او دا هم ترې جوتيږي چې د هر هغه څه غوښتنه چې تر حکم او مشرۍ پورې اړه لري مکروه ده، نو په امارت کې قضا، احتساب او داسې نور هم داخل شول، هرڅوک چې يې په خوله وغواړي او ورکړل شي، نو مرسته ورسره نه کيږي او له هر چا سره چې د الله مرسته نه وي هغه نشي کولای چې په يوازې ځان دې د يو کار د سرته رسولو توان ولري، نو بايد د دندې د غوښتلو وړانديزيې ونه منل شي.

معلومه خبره ده چې هره وظيفه او دنده مشکلات لري او له هرچا سره چې د الله تعالى مرسته نه وي هغه ګواکې په کې راګير شو او دنيا او اخرت يې وبايلل، نو

څوک چې هوښیار وي هغه په خپله خوله امارت نه غواړي، خو څوک چې یې اهل او مستحق وي او د ده له غوښتنې پرته ورکول شي نو رسول الله صلی الله علیه وسلم یې د مرستې خبر ورکړی او دا بیشکه چې فضل او بهتري ده.

(۳) دا چې هرڅوک په خوله وظیفه غواړي هغه به خامخا یا د ده نفسي خواهش وي چې له مال، متاع، دولت او مرتبې سره یې مینه وي او یا د دې لپاره چې له وظیفې ترلاسه کولو څخه په استفاده له خپل مخالف لوري څخه انتقام واخلي.

د دندې غوښتنه نه د نفسي خواهش په بنیاد او نه هم د خپلو مخالفینو د ټکولو لپاره جائز ده، ځکه وظیفه هغه الهی امانت دی، چې د مسلمانانو مصالح ورپورې تړلي دي، نو ځکه یې باید څوک د نورو اهدافو لپاره د ترلاسه کولو کوښښ ونه کړي.

# د آمر اطاعت

د شرعي امير اطاعت واجب دی؛ لکه چې الله تعالی فرمايي:

يا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا الله وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنكُمْ فَإِن تَنَازَعْتُمْ فِي شَيْءٍ فَرُدُّوهُ إِلَى الله وَالرَّسُولِ إِن كُنتُمْ تُؤْمِنُونَ بِالله وَالْيَوْمِ الْآخِرِ ذلِكَ خَيْرٌ وَأَحْسَنُ تَأْوِيلًا. [النساء، ٥٩]

ژباړه: اې د ایمان خاوندانو! د الله او د رسول خبره منئ او د هغو چې په تاسو اميران ټاکل شوي دي، نو که چېرې تاسو په خپلو کې د څه شي په باره کې جګړه وکړئ، هغه الله او د هغه رسول ته راجع کړئ، که چېرې تاسو په الله تعالی او په ورځ د اخرت ایمان لرئ، دا (کار) ډېر غوره دی او د انجام په لحاظ ډېر ښه دی.

الله تعالی لومړی بنده ته د خپل حکم د منلو امر فرمایلی او بیا یې د رسول الله صلی الله علیه وسلم او ورپسې د اولوا الامر کسانو د اطاعت حکم ورته کړی دی.

حضرت سهل بن عبدالله وايي: وَإِذَا نَهَى السُّلْطَانُ الْعَالِمَ أَنْ يُفْتِيَ فَلَيْسَ لَهُ أَنْ يُفْتِيَ، فَإِنْ أَفْتَى فَهُوَ عَاصٍ وَإِنْ كَانَ أَمِيرًا جَائِرًا.

ژباړه: که چیري سلطان یوه عالم ته امر وکړ چې فتوا مه صادروه، هغه بیا حق نلري چې فتوا ورکړي که يي فتوا ورکړه ګنهګار دی، که څه هم امیر ظالم وي.

امام قرطبي ليکي: فامر الله تَعَالَى بِرَدِّ الْمُتَنَازَعِ فِيهِ إِلَى كِتَابِ الله وَسُنَّةِ نَبِيِّهِ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَيْسَ لِغَيْرِ الْعُلَمَاءِ مَعْرِفَةَ كَيْفِيَّةِ الرَّدِّ إِلَى الْكِتَابِ

وَالسُّنَّةِ وَيَدُلُّ هَذَا عَلَى صِحَّةِ كَوْنِ سُؤَالِ الْعُلَمَاءِ وَاجِبًا وَامْتِثَالِ فَتْوَاهُمْ لَازِمًا، قَالَ سَهْلُ بْنُ عَبْدِ الله رَحِمَهُ الله: لَا يَزَالُ النَّاسُ بِخَيْرٍ مَا عَظَّمُوا السُّلْطَانَ وَالْعُلَمَاءَ، فَإِذَا عَظَّمُوا هَذَيْنَ أَصْلَحَ الله دُنْيَا هُمْ وَأُخْرَاهُمْ وَإِذَا اسْتَخَفُّوا بهذين أفسدوا دنياهم واخراهم.

ژباړه: بيا الله تعالى امر وکړ چې په کومو مسئلو کې ستاسو ترمنځ منازعه وي هغه دې د الله کتاب او د رسول الله صلى الله عليه وسلم سنتو ته حواله شي او دا چې د الله تعالى کتاب او د رسول صلى الله عليه وسلم سنتو ته څنګه حواله کېږي؟ دا بيا له علماوو پرته بل چا ته نه معلوميږي، نو له دې څخه څرګنده شوه چې له علماوو پوښتنه کول واجب او د امر امتثال يې لازم دی.

سهل بن عبد الله رحمه الله وايي: خلک ترهغو په خير کې دي څو چې د علماوو او سلطان تعظيم کوي، که دا دواړه يې کول نو دنيا او آخرت به يې ښايسته وي او که دا دې دواړو سپکاوی يې کاوه نو دنيا او آخرت يې لاړل. حضرت ابي بكرة رضى الله عنه روايت کوي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: من أكرم سلطان الله تبارك وتعالى في الدنيا أكرمه الله يوم القيامة ومن أهان سلطان الله تبارك وتعالى في الدنيا أهانه الله يوم القيامة. (احمد، رقم: ٢٠٤٣٣)

ژباړه: چا چې په دنيا کې د الله تبارک و تعالى خليفه ته عزت ورکړ الله به يې په قيامت کې عزتمن کړي او چا چې په دنيا کې د الله تعالى خليفه او سلطان سپک کړ الله به يې په قيامت کې سپک کړي.

عَنْ زِيَادِ بْنِ كُسَيْبٍ الْعَدَوِيِّ، قَالَ كُنْتُ مَعَ أَبِي بَكْرَةَ رضى الله عنه تَحْتَ مِنْبَرِابْنِ عَامِرٍوَهُوَ يَخْطُبُ وَعَلَيْهِ ثِيَابٌ رِقَاقٌ،فَقَالَ أَبُوبِلاَلٍ: انْظُرُوا إِلَى أَمِيرِنَا يَلْبَسُ ثِيَابَ الْفُسَّاقِ، فَقَالَ أَبُوبَكْرَةَ: اسْكُتْ سَمِعْتُ رَسُولَ الله صلى الله عليه وسلم يَقُولُ:«مَنْ أَهَانَ سُلْطَانَ اللهِ فِي الأَرْضِ أَهَانَهُ اللهُ». (ترمذي،رقم:٢٢٢٤)

ژباړه: له زیاد بن کسیب عدوی څخه روایت شوی، چې زه له ابوبکرة رضی الله عنه سره د ابن عامر تر منبر لاندې ناست وم، هغه خطبه ویله او نرۍ جامې یې اغوستې وې، نو ابوبلال وویل، وګورئ، خپل امیر ته چې د فاسقانو جامې یې په تن کړي دي، ابو بکرة وویل: چُپ شه! ما له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه اورېدلي دي چې ویل یې: څوک چې په ځمکه کې د الله خلیفه او سلطان سپک کړي الله به یې (په قیامت کې) سپک کړي.

لکه څنګه چې د خلیفه او د مسلمانانو د ستر امیر درناوی لازم دی، همداسې د ښکته امیرانو د امرد متابعت تر څنګ د هغوی درناوی او احترام هم لازم دی. د هجرت په ۱۱ کال نبی علیه السلام د روم د غزوې لپاره یو لښکر تیار کړ، چې حضرت ابوبکر صدیق، عمر فاروق، سعد بن ابی وقاص، ابا عبیدة بن جراح او داسې نور کبار صحابه رضی الله عنهم پکې وو او د لښکر مشر یې اسامه بن زید رضی الله عنه کړ، چې په دغه وخت کې یې عمر تر شلو کلونو نه او ښت، په دغه مهال د نبی علیه السلام ناروغي سخته شوه او لښکر له روانېدلو څخه وځنډېده، نبی علیه السلام په دغه مرض کې رحلت وکړ، وروسته مسلمانانو له حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه سره بیعت وکړ، هغه د دغه لښکر د لیږلو امر وکړ او اسامه بن زید رضی الله عنه

ته یې وویل، چې که په حضرت عمر رضی الله عنه زما مرسته وکړې، یعنی را سره پرې یې ږدې، هغه هم ورسره پرېښود، له دې وروسته چې به کله هم حضرت عمر رضی الله عنه له اسامه رضی الله عنه سره مخ شو، نو ورته به یې ویل: مرحبا باميري! یعنی زما امیر ته دې ښه راغلاست وي، کله چې به یو څوک له دغې خبرې او عمر رضی الله عنه له لوري اسامه رضی الله عنه ته د عزت په ورکولو حیران شو، نو هغه به وویل، لقد أمّرَهُ عليّ رسول الله صلى الله عليه وسلم، یعنی نبی علیه السلام هغه په ما امیر ټاکلی و. (صور من حياة الصحابة)

دلته د امیر درناوی هم څرګند شو او دا هم ورسره څرګنده شوه، چې که مشر امیر په تاسو امیر وټاکي (که څه هم هغه کشر وي) باید تابعداري یې وشي.

ابوهریرة رضی الله عنه روایت کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: مَنْ أَطَاعَنِي فَقَدْ أَطَاعَ الله وَمَنْ عَصَانِي فَقَدْ عَصَى الله وَمَـنْ عَصَى أَمِيرِي فَقَدْ عَصَانِي. (رواه مسلم، رقم: ۱۸۳۵)

ژباړه: چا چې زما اطاعت وکړ، هغه د الله تعالی اطاعت وکړ او چا چې زما نافرماني وکړه، هغه د الله تعالی نافرماني وکړه او چا چې زما د امیر نا فرماني وکړه، هغه زما نافرماني وکړه.

همدارنګه د ابوهریره رضی الله عنه په یوه بل روایت کې هم راغلي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: عليكَ السَّمع والطاعة في عُسرِك ويُسرِك ومنْشَطِك ومكْرَهِك وأثرة عليك. (مسلم)

ژباړه: تاسو به په هر حال د امیر اطاعت کوئ که تکلیف وي او که راحت، که خوښ یاست او که نا خوښ، که څه هم پر تاسو بل څوک غوره شوی وي.

د فتح الملهم په تکمله کې د (اثرة...) په تشریح کې داسې لیکلي: که څه هم بل چا ته تر تا زیات امتیازات، بخښښونه او نور ورکړل شي، مقصد دا چې اطاعت د دې په وجه پرېښودل نه دي روا، چې امیر خپلو مأمورینو ته په امتیازاتو او امکاناتو ورکولو کې عدالت نه کوي او یوه ته تر بل زیات څه ورکوي.

حضرت ابوذر رضی الله عنه وایي: إن خلیلي أوصاني أن أسمع وأطیع وإن کان عبدا مجدع الأطراف (رواه مسلم) ژباړه: زما دوست (محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم) ماته وصیت فرمایلی، چې د خپل امیر اطاعت به کوم که څه هم هغه داسې مریی وي، چې مقطوع الاطراف وي (یعنی ډیر ناڅیزه څوک هم وي)

تنبیه: که د مجاهدینو امیر کمزوری دنی النسب (ټیټ ذاتی) وي هم یې اطاعت لازم دی.

## د امیر اطاعت د امتیازاتو په شرط نا روا دی

حضرت ابو هریرة رضي الله عنه روایت کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: «تَعِسَ عَبْدُ الدِّينَارِ وَعَبْدُ الدِّرْهَمِ وَعَبْدُ الخَمِيصَةِ إِنْ أُعْطِيَ رَضِيَ وَإِنْ لَمْ يُعْطَ سَخِطَ، تَعِسَ وَانْتَكَسَ وَإِذَا شِيكَ فَلاَ انْتَقَشَ، طُوبَى لِعَبْدٍ آخِذٍ بِعِنَانِ فَرَسِهِ فِي سَبِيلِ الله، أَشْعَثَ رَأْسُهُ، مُغْبَرَّةٍ قَدَمَاهُ، إِنْ كَانَ فِي الحِرَاسَةِ،

كَانَ فِي الحِرَاسَةِ وَإِنْ كَانَ فِي السَّاقَةِ كَانَ فِي السَّاقَةِ، إِنِ اسْتَأْذَنَ لَمْ يُؤْذَنْ لَهُ وَإِنْ شَفَعَ لَمْ يُشَفَّعْ» (بخاري، رقم: ۲۸۸۷)

ژباړه: بدمرغه دی د دینار او درهم مريی، همدارنګه د ښو جامو او ښو فرشونو مريی، هغه ته که څوک څه ورکوي نو خوښ وي او که يې نه ورکوي نو په قهر وي، بې برخې او محروم دی که اغزی يې تر بدن شي د مرستې څوک نشي موندلای او ایستلای يې هم نشي، نیکمرغي او بشارت دی هغه چاته، چې د الله تعالي په لار کې يې د آس ملونې نیولې وې سپېرې پښې، ببر سر، که يې په څار وګومارې نو پیره کوي، که يې د لښکر وروستۍ برخې ته استوې، هلته ځي، که اجازه وغواړي نه ورکول کیږي او که د چا سپارښتنه کوي هغه هم نه منل کیږي، یعني چې څوک د دنیا د اسبابو حریص وي داسې چې که څېري شی ورکول کیږي نو خوشحال وي، کنه نو په غوسه وي، دغه کس هلاک دی، څوک دې هیڅ مرسته نه کوي.

## د الله په نافرماني کې د امیر اطاعت نشته

علي رضي الله عنه روایت کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: «لَا طَاعَةَ فِي مَعْصِيَةِ اللهِ، إِنَّمَا الطَّاعَةُ فِي الْمَعْرُوفِ». (مسلم رقم ۱۸٤۰)
ژباړه: په هیڅ هغه شي کې چې د الله نافرماني وي د بشر اطاعت نشته، (ځکه) اطاعت په روا کارونو کې دی.

د اطاعت یوه ګټه داده، چې د مسلمانانو اتحاد او یووالی تامینوي، ځکه چې که مسلمانان سره یو نه وي نو هر یو به په مفاسدو اخته وي. بله ګټه یې داده، چې په دې سره د مسلمانانو غلبه راځي او په د ښمنانو لاس بري کېږي.

# په امام او مسئولینو باید نېک ګومان ولرئ

ټول عامه ولس او په ځانګړې توګه مجاهدینو ته په کار دي چې په امیر او نورو مسئولینو نېک ګومان ولري او د هغوی کړه وړه په فاسد تأویل سره و نه ارزوي، بلکې تر خپله وسه دې د دوی کړنې په سم لوري توجیه کوي، الله تعالی فرمایي:

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اجْتَنِبُوا كَثِيرًا مِّنَ الظَّنِّ إِنَّ بَعْضَ الظَّنِّ إِثْمٌ وَلَا تَجَسَّسُوا وَلَا يَغْتَب بَّعْضُكُم بَعْضًا أَيُحِبُّ أَحَدُكُمْ أَن يَأْكُلَ لَحْمَ أَخِيهِ مَيْتًا فَكَرِهْتُمُوهُ وَاتَّقُوا اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ تَوَّابٌ رَّحِيمٌ. (الحجرات ۱۲)

ژباړه: اې هغو کسانو چې ایمان مو راوړی! تاسو له ډېرو (بدو) ګمانونو څخه ځان وساتئ، بېشکه ځینې ګومانونه ګناه وي، پټ عیبونه مه لټوئ او ځینې ستاسو د ځینو نورو غیبت مه کوئ، ایا په تاسو کې یو څوک دا خوښوي چې د خپل مړه ورور غوښه وخوري؟ تاسو دغه (خوراک) بد ګڼئ، نو له الله تعالی څخه ووېرېږئ، بېشکه الله ښه توبه قبلوونکی، بې حده رحم کوونکی دی.

امام قرطبي وايي: معنی دا چې که د دوی کارونه په ظاهره تاسو ته د خیر ښکاري، نو بیا د خیر په خلکو بد ګوماني مه کوئ. حضرت ابوهریره رضی الله عنه روایت کوي چې

رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: «إِيَّاكُمْ وَالظَّنَّ، فَإِنَّ الظَّنَّ أَكْذَبُ الحَـدِيثِ وَلاَ تَحَسَّسُوا وَلاَ تَجَسَّسُوا وَلاَ تَحَاسَدُوا وَلاَ تَدَابَرُوا وَلاَ تَبَاغَضُـوا وَكُونُوا عِبَـادَ اللهِ إِخْوَانًا». (رواه البخاري ٦٠٦٤)

ژباړه: له بد ګومانۍ څخه ځان وساتئ (ځکه) بد ګوماني د دروغو تر ټولو ناوړه ډول دی د عوراتو یعني عیبونو پلټنې مه کوئ، د خلکو اسرار مه لوځوئ، د ضد سیالۍ مه کوئ، یو له بله کینې مه پالئ، یو له بله خفګان مه کوئ، بغض او عداوت مه کوئ او د الله تعالی (ربښتیني) عبادت کوونکي شئ، په داسې حال کې چې تر منځ مو ورورولي قائمه وي څنګه چې در ته امر شوی دی.

قرطبي لیکي: الظن هُنَا وَفِي الْآيَةِ هُوَ التُّهْمَةُ وَمَحَلُّ التَّحْذِيرِ وَالنَّهْيِ إِنَّمَـا هُـوَ تُهْمَةٌ لَا سَبَبَ لَهَا يُوجِبُهَا، كَمَنْ يُتَّهَمُ بِالْفَاحِشَةِ أَوْ بِشُرْبِ الْخَمْـرِ مَثَلًا وَلَـمْ يَظْهَـرْ عَلَيْهِ مَا يَقْتَضِي ذَلِكَ وَدَلِيـلُ كَـوْنِ الظَّـنِّ هُنَـا بمعـنى التهمـة قـوله تَعَـالَى:"وَلا تَجَسَّسُوا"وَذَلِكَ أَنَّهُ قَدْ يَقَعُ لَهُ خَاطِرُ التُّهْمَةِ ابْتِدَاءً وَيُرِيدُ أَنْ يَتَجَسَّسَ خـبر ذلـك ويبحث عنه ويتبصر ويستمع لتحقق مَا وَقَعَ لَهُ مِنْ تِلْكَ التُّهْمَةِ، فَنَهَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَـلَّمَ عَـنْ ذَلِـكَ وَإِنْ شِـئْتَ قُلْـتَ: وَالَّذِي يُمَـيِّزُ الظُّنُـونَ الَّـتِي يَجِـبُ اجْتِنَابُهَا عَمَّا سِوَاهَا، أَنَّ كُلَّ مَا لَـمْ تُعْـرَفْ لَهُ أَمَـارَةٌ صَـحِيحَةٌ وَسَـبَبٌ ظَـاهِرٌ كان حراما واجـب الاجتنـاب وَذَلِـكَ إِذَا كَانَ الْمَظْنُـونُ بِـهِ مِمَّـنْ شُـوهِدَ مِنْـهُ السَّـتْرَ وَالصَّلَاحَ.

ژباړه: ګومان دلته او په آیت شریف کې د تهمت په معنا دی، ممانعت له دې شوی چې بې ځایه تهمت مه لګوئ، مثلا یو څوک په زنا یا شراب څښلو متهم کړئ، مګر په

هغه باندې د دغه تهمت هیڅ اثار هم نه وي، د دې دلیل چې ظن دلته د تهمت په معنی دی: دا قول د الله تعالی دی "لاتجسسوا" ځکه کله پر یو چا د سړي په زړه کې تهمت پیدا سي بیا یې تحقیق او تجسس کوي پلټنه یې کوي، د لیدلو او اورېدلو کوښښ یې کوي، ترڅو دا تهمت پرې ثابت کړي، د دغه قسم تهمت څخه رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ منع کړې ده او هغه (ظن) چې کول یې حرام دي، دا دی چې تاسو د هغه ظاهري سبب او نښې نښانې نه وینئ او هغه څوک هم چې تاسو ورباندې بد ګومان کوئ اهل خیر وي، یعني ښه کار ونه کوي او امانت کار وي نو دغه تهمت حرام او واجب الاجتناب دی.

## د بدګومانۍ زیانونه

بدګوماني ډېر زیانونه لري: لومړی دا، چې په آیت شریف کې ذکر شو چې (إِنَّ بَعْضَ الظَّـنِّ إِثْـمٌ) یعني ځیني ګومانونه داسې ګناه ده چې د جزا وړ وي، لکه په ښو خلکو او مومنانو بد ګوماني کول.

دوهم دا، چې بد ګوماني عداوت پیدا کوي او د نږدې خلکو ترمنځ د اوږدې فاصلې سبب کېږي. دریم، که چیري په آمرانو بد ګوماني وشي نو ضرور خبره تر عدم اطاعت پورې رسېږي.

# تــواضــع

راغب اصفهاني د تواضع د معنا په هکله ليکي: تواضع د انسان لپاره په هغه مرتبه رضا کېدلو ته وايي چې د ده له استحقاق څخه ټيټه وي.

الله تعالى فرمايي: ﴿وَاخفِض جَنَاحَكَ لِمَنِ اتَّبَعَكَ مِنَ المُؤمِنِينَ (الشعراء ۲۱۵) ژباړه: او ته خپل وزر ښکته کړه (په تواضع او رحمت سره نرم اوسه) د هغه چا لپاره چې ستا پيروي يې کړې ده، چې مومنان دي.

ملا علي قاري رحمه الله وايي، چې ټول حاکمان په دغه امر کې شامل دي، نو د هر حاکم امير د پاره ښايي چې د خپل ما تحت خلکو سره تواضع او نرمي وکړي او رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي: التواضع لايزيد الا رفعة، فتواضعوا يـرفعكم الله. (كنزالعمال) ژباړه: تواضع سړي ته لوړتيا وربښي، نو تواضع کوئ چې الله مو لوړ کړي.

حضرت ابو هريره رضی الله روايت کوي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: مَا نَقَصَتْ صَدَقَةٌ مِنْ مَالٍ وَمَا زَادَ الله عَبْدًا بِعَفْوٍ إِلَّا عِزًّا وَمَا تَوَاضَعَ أَحَدٌ لِلّٰهِ إِلَّا رَفَعَهُ الله. (ترمذي، رقم: ۲۰۲۹)

ژباړه: صدقه له مال څخه څه نه کموي او الله تعالى بنده ته په عفوه سره نه ورزياتوي مګر عزت او هرڅوک چې د الله تعالى لپاره تواضع وکړي الله به يې لوړ کړي.

دغه رنګه ابو هريرة رضی الله عنه په بل روايت کې فرمايي: چې رسول الله صلی الله عليه وسلم ويل: **طوبى لمن تواضع فی غيرمنقصة.** (الطبراني في مكارم الاخلاق، رقم :۱۷) نيکمرغي او زيری دی د هغه چا لپاره چې له ذلت او پستي قبلولو پرته تواضع وکړي

**قال المناوي في تفسير هذا الحديث بان لايضع نفسه بمكان يزري به ويؤدي الى تضييع حق الحق فان القصد بالتواضع خفض الجناح للمؤمنين.**
المناوي د دغه حديث په شرح کې وايي: تواضع دا نه ده، چې يو څوک ځان حقير او سپک کړي او يا دې تواضع د ذی حقه د حق د ضائع کېدلو لامل شي، مقصود له تواضع څخه دا ده، چې د مومنانو لپاره وزر ښکته کړای شي او له هغوی سره نرمي او ښه چلند وکړای شي.

رسول الله صلی الله عليه وسلم مقداد رضی الله عنه په يوه سريه امير مقرر کړ، کله چې بېرته راستانه شول، رسول الله عليه السلام ور څخه وپوښتل: امارت څنګه و؟ مقداد رضی الله عنه په ځواب کې ورته وويل: اې د الله رسوله! کله چې روان شوو ما داسې نه انګېرله چې زه تر چا غوره او بهتريم، خو بېرته داسې راستون شوم لکه چې ټول زما مريیان وي، رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته وويل: امارت همداسې وي. دا روايت ابونعيم کړی دی. يعنی امارت او مشري په سړي کې غرور او لويي پيدا کوي، نو په دغه حال کې، چې يو څوک امير وي بايد تواضع او عاجزي وکړي او که يو څوک په دغه حالت کې تواضع وکړي، نو دا واقعي تواضع ده، تواضع تر هر چا زيات له اميرانو سره مناسبه ده، ځکه هغوی ته خلک اړ وي او

په هغوی خپل لاندې کسان راټول وي، نو که دوی له مومنانو سره ناوړه چلند او په هغوی سختي کوي، نو بیا به خلک له دوی څخه خپلې اړتیاوې نشي پوره کولای، نو مصالح ځنډیږي او نه به هم خپل ماتحت کسان ورسره ګوزاره کولای شي، او یو والی یې ترمنځ نه پاته کیږي.

ابن حبان رحمه الله وايي: تواضع دوه ډوله ده، یوه یې ښه او بله یې بده او ناسمه تواضع ده، ښه یې داده چې په خلکو ځان لوړ ونه ګڼې او نا روا یې دا چې د دشتمن سړي په وړاندې د دې لپاره تواضع وشي چې له دنیا څخه یې برخمن شي. (روضة العقلاء)

## دتواضع ګټې:

۱: کله چې امیر له رعیت سره تواضع کوي، نو د دوی محبت لاس ته راوړي.

۲: تواضع د رب العالمین د محبت دلیل ده.

۳: په تواضع سره د الله تعالی نصرت حاصلیږي.

۴: په تواضع سره په مال او عمر کې برکت راځي.

## تواضع او سلف صالحین

وعن عروة بن الزُّبير رضي الله عنهما قال: (رأيت عمر بن الخطَّاب رضي الله عنه وعلى عاتقه قربة ماء، فقلت: يا أمير المؤمنين! لا ينبغي لك هذا، فقال:

لما أتاني الوفود سامعين مطيعين دَخَلَت نفسي نخوة فأردت أن أكسرها. (الرسالة القشيرية)

ژباړه: عروه بن زبير رضی الله عنهما روايت کوي چې يوه ورځ مې د وهم خليفه حضرت عمر فاروق رضی الله عنه په داسې حال کې وليد چې د اوبو ژی يې په اوږه و، ما ورته وويل: اميرالمؤمنينه! له تا سره دا نه ښايي. عمرفاروق راته وويل: کله چې ماته د خلکو وفدونه په داسې حال کې راغلل چې منونکي او اورېدونکي وو، نو نفس مې يو څه غټ شو نو مې اراده وکړه چې بيرته يې مات کړم.

عن عائشة رضي الله عنها، قالت: «إنَّكم لتغفلون أفضل العبادة: التَّواضُع». (رواه النسائي فی سنن الكبری) ژباړه: روايت دی چې حضرت عائشې رضی الله عنها وفرمايل: تاسو له أفضل عبادت څخه غافل ياست چې هغه تواضع ده.

كان عند عمر بن عبد العزيز قوم ذات ليلة في بعض ما يحتاج إليه، فغشي سراجه، فقام إليه فأصلحه، فقيل له: يا أمير المؤمنين! ألا نكفيك؟ قال: وما ضرَّني؟ قمت وأنا عمر بن عبد العزيز ورجعت وأنا عمر بن عبد العزيز. (سيرة عمر بن عبدالعزيز لابن عبدالحكم)

ژباړه: يوه شپه چې د ځينې ضروري خبرو په اړه د اميرالمؤمنين عمر بن عبدالعزيز په مجلس کې خلک ناست و نو د مجلس څراغ کمزوری شو يعنې ګُل کېدو ته قريب شو، اميرالمؤمنين عمر بن عبدالعزيز خپله ور ولاړ شو او څراغ يې سم کړ. په خلکو کې يو چا وويل: أميرالمؤمنينه! آيا موږ کافي نه يو؟ يعني موږ دا

ځراغ سمولی شوای! امیرالمؤمنین ځواب ورکړ: ما ته څه تاوان رسیدلی چې ولاړ شوم هم عمر بن عبدالعزیز وم او چې بیرته راوګرځیدم هم عمر بن عبدالعزیز یم.

وقال قتادة: «مَن أُعْطِي مالًا أو جمالًا وثيابًا وعلمًا، ثمَّ لم يتواضع، كان عليه وبالًا يوم القيامة» (التواضع و الخمول لابن أبى الدنيا). حضرت قتاده رحمه الله وايي: چا ته چې د الله تعالی له طرفه مال، ښایست، ښې جامې او علم ورکړ شوی وي او تواضع نه کوي نو دا به د قیامت په ورځ دده لپاره پېټی (درونډ بار) وي.

په التواضع و الخمول کتاب کې لیکلي چې حسن بصري صاحب د تواضع معنی داسې کړې: «التواضع أن تخرج من منزلک ولا تلقى مسلما إلا رأيت له عليک فضلا»، : تواضع داده چې له کوره ووځې او له هر مسلمان سره چې مخ کیږې هغه پرځان غوره درته ښکاره شي.

قال عمرو بن القيس الملائى: ثلاث من رءوس التواضع: أن تبدأ بالسلام على من لقيت وأن ترضى بالمجلس الدون من الشرف وأن لا تحب الرياء والسمعة والمدحة في عمل الله. (التواضع و الخمول)

ژباړه: عمرو بن القیس وایي، چې درې شیان د تواضع مهم امور دي: دا چې له چا سره د مخامخ کیدو په مهال ورباندې اول سلام اداء کړې او د اشرافو او جاه لرونکو په نسبت د غریبو خلکو په مجلس راضي اوسې او بل دا چې په دیني عمل کې ریاء، سمعت او ستاینه خوښه نکړې.

# اميـرانـو او واكمنانـو تـه نصـيحت

## (١) له نېكوخلكو سره ناسته ولاړه :

اميرانو او نورو واكمنانو ته په كار ده چې له علماوو او صالحانو سره ناسته ولاړه ولري له هغوى سره مشوره وكړي او نصيحت ته يې غوږ ونيسي، همدغه د پخوانيو نيكانو واكمنو دستور وو.

إِنَّ عُمَرَ بْنَ عَبْدِ الْعَزِيزِ لَمَّا وَلِيَ الْخِلافَةَ دَعَا سَالِمَ بْنَ عَبْدِ الله وَمُحَمَّدَ بْـنَ كَعْبٍ الْقُرَظِيِّ ورجاء بن حيوة فقال لهم: قَدِ ابْتُلِيتُ بِهَـذَا الْبَلاءِ فَأَشِيرُواعَلَيَّ. فَقَالَ لَهُ سَالِمُ بْنُ عَبْـدِ اللهِ: إِنْ أَرَدْتَ النَّجَاةَ مِنْ عَذَابِ الله فَصُمْ عَنِ الدُّنْيَا وَلْيَكُنْ إِفْطَارُكَ مِنْهَا الْمَوْتَ.

وَقَالَ لَهُ مُحَمَّدُ بْنُ كَعْبٍ: إِنْ أَرَدْتَ النَّجَاةَ مِنْ عَذَابِ الله فَلْيَكُنْ كَبِيرُ الْمُسْلِمِينَ عِنْدَكَ أَبًا وَأَوْسَطُهُمْ عِنْدَكَ أَخًا وَأَصْغَرُهُمْ عِنْدَكَ وَلَدًا فَوَقِّرْ أَبَاكَ وَأَكْرِمْ أَخَاكَ وَتَحَنَّنْ عَلَى وَلَدِكَ.

وَقَالَ لَهُ رَجَاءُ بْنُ حَيْوَةَ: إِنْ أَرَدْتَ النَّجَاةَ مِنْ عَذَابِ الله فَأَحِبَّ لِلْمُسْلِمِينَ مَا تُحِبُّ لِنَفْسِكَ وَاكْرَهْ لَهُمْ مَا تَكْرَهُ لِنَفْسِكَ ثُمَّ مُتْ إِذَا شِئْتَ. (التوابين لابن قدامة)

ژباړه: كله چې عمر بن عبد العزيز رحمه الله خليفه وټاكل شو نو د وخت لوى صالحان سالم بن عبد الله، محمد بن كعب او رجاء بن حيوة رحمهم الله يې

راوغوښتل او ورته ویې ویل: زه په دې ازموینښت کې راغلی یم تاسو مشوره راکړئ چې زه څه وکړم؟

سالم بن عبد الله ورته وویل: که ته غواړې چې نجات پیدا کړې نو له دنیا څخه داسې روژه ونیسه چې افطار یې ستا مرګ وي!

محمد بن کعب ورته وویل: که د الله تعالی له عذابه نجات غواړې نو د مسلمانانو مشر داسې وګڼه لکه خپل پلار او ځوان یې لکه خپل ورور او کشر یې لکه خپل زوی، د پلار احترام کوه، له ورور سره نیکي کوه او په زوی دې شفقت کوه!

رجاء بن حیوة ورته وویل: که د سبا ورځې نجات غواړې نو د مسلمانانو لپاره هغه څه غوره کړه چې د ځان لپاره یې غوره کوې او د دوی لپاره هغه نا خوښه وګڼه چې د ځان لپاره یې نا خوښه ګڼې، بیا دې چې هر وخت خوښه شي ومره!

امیر ته نه ده روا چې له خپلو خپلوانو یو څوک چې د کار اهل نه وي او یا بل څوک تر ده اهل وي په کار وګوماري، ځکه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: "من ولي ذا قرابة محاباة وهو يجد خيرا منه لم يجد رائحة الجنة". (ابن عساكر عن أبي بكر) كنز العمال، رقم: ١٤٧٥٢.

ژباړه: د هغه چا به د جنت بوی هم تر سپوږمو نشي څوک چې د خپلوي په خاطر خپلوان په کار ګوماري په داسې حال کې چې تر هغه اهل بل څوک هم وي.

بل ځای فرمایي: "من استعمل عاملا من المسلمين وهو يعلم أن فيهم أولى بذلك منه وأعلم بكتاب الله وسنة نبيه فقد خان الله ورسوله وجميع المسلمين".

(عن ابن عباس) كنز العمال، رقم: ١٤٩١٩). ژباړه: كه امير په مسلمانانو يو ځوک مقرر کړ او پوهيده چې ترده اهل او په قرآن او سنت پوه بل څوک هم شته، نو دغه امير له الله تعالى، رسول صلى الله عليه وسلم او ټولو مسلمانانو سره خيانت وکړ.

همدارازعمر رضى الله عنه وايي،عن عمر قال: من استعمل فاجرا وهو يعلم أنه فاجر فهو مثله. (كنز العمال، رقم:١٤٣٠٦) ژباړه: كه يو څوک فاجر سړى په وظيفه مقرر کړي او په فجور يي علم هم ولري نو مقررونکی هم دهغه په شان فاجر دی.

## (٢) دراز ساتنه

اميرانو ته په كار ده چې خپل سِر او راز پټ وساتي، حضرت كعب بن مالك رضى الله عنه روايت كوي، چې كَانَ رَسُولُ اللّٰه صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَلَّمَا يُرِيدُ غَزْوَةً يَغْزُوهَا إِلَّا وَرَّى بِغَيْرِهَا. (بخاري، ٢٩٤٧)

ژباړه: رسول الله عليه السلام به ډېر ځله چې د کومې غزا اراده لرله نو خلکو ته به يې بل لورى په نظر ورکاوه، يعني نبى عليه السلام دا كار ځكه كاوه، ترڅو د جګړې لوري ته د تګ راز پټ وساتل شي، چې هسې نه، د مسلمانانو د تګ لوری دښمنانو ته ښکاره شي او هغوی په لاره کې مسلمانانو ته تکليف ورسوي، د هر هغه څه په ښکاره کېدلو کې چې د مسلمانانو زيان وي، هغه بايد پټ وساتل شي.

ماوردي روايت کوي: قال علي بن أبي طالب رضي الله عنه: «سرُّك أسيرك، فإن تكلمت به، صرت أسيره».

ژباړه: حضرت علي رضی الله عنه وفرمايل، چې ستا راز ستا بندي دی، که دې تکلم ورباندې وکړ او افشاء دې کړ نو ته به يې بندي شې! يعني بيا به د همدغه راز د افشاء له وجې تا ته مسؤليت متوجه وي.

ماوردي وايي: د راز ساتنه د کاميابۍ تر ټولو لوی سبب او د سمون او اصلاح وسيله ده.

ابن حبان وايي: که چا خپل راز پټ وساتی تدبير يې پوخ او بری يې حتمي دی.

قال عمر بن عبد العزيز رضي الله عنه: (القلوب أوعية الأسرار والشفاه أقفالها والألسن مفاتيحها فليحفظ كلُّ امرئ مفتاح سرِّه. (أدب الدنيا و الدين للماوردی) عمر بن عبد العزيز رحمه الله وايي: زړونه د اسرارو لوښي دي، شونډې يې قلفونه او ژبې يې کلياني دي، په هر چا لازمه ده چې د رازونو خلاصوونکې کلياني وساتي، يعني ژبې د رازونو له افشاء څخه محفوظې کړي.

د مجاهدينو حفاظت د راز په ساتنه کې نغښتی دی، نو امير ته په کار ده چې له هغه ملګري سره مشوره وکړي چې رازونه ساتي.

## (۳) د مجاهدینو او شهیدانو په کورنیو پاملرنه

امیرانو او موظفینو ته په کار ده چې تر خپله وسه د مجاهدینو د کورنیو اړتیاوې پوره او په ځانګړې توګه د هغو ملګرو د کونډو او یتیمانو غم وخوري چې شهیدان شوي دي.

حضرت بریده رضی الله عنه روایت کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: «حُرْمَةُ نِسَاءِ الْمُجَاهِدِينَ عَلَى الْقَاعِدِينَ كَحُرْمَةِ أُمَّهَاتِهِمْ وَمَا مِنْ رَجُلٍ مِنَ الْقَاعِدِينَ يَخْلُفُ رَجُلًا مِنَ الْمُجَاهِدِينَ فِي أَهْلِهِ فَيَخُونُهُ فِيهِمْ إِلَّا وُقِفَ لَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، فَيَأْخُذُ مِنْ عَمَلِهِ مَا شَاءَ، فَمَا ظَنُّكُمْ؟»

ژباړه: د مجاهدینو د مېرمنو حرمت په ناستو کسانو باندې د خپلو مېندو د حرمت په څېر دی، که له جهاد څخه یو ناست تن د یوه مجاهد د کورساتنه کوي او بیا د هغه له اهل سره خیانت وکړي د قیامت په ورځ به د مجاهد لپاره ودرول شي او د خائن له نېکو اعمالو څخه به څومره چې یې خوښه شي واخلي، بیا رسول الله صلی الله علیه وسلم موږ ته وکتل او ویې فرمایل: تاسو څه ګومان کوئ؟

«حرمة نساء المجاهدين» یعنی د مجاهدینو میرمنو ته په بد نظر کتل، یا بدې خبرې داسې حرامې دي لکه خپلې مورته او یا دا چې له حرمت نه مراد د هغوی احترام او له هغوی سره احسان او نیکي کول او اړتیاوې یې ورپوره کول دي، چې دا له جهاد څخه په ناستو کسانو داسې لازم دي لکه د خپلو میندو احترام چې پرې لازم

دی، «فماظنكم؟» تاسو څه ګومان کوئ چې څومره نیکي به ځني واخلي؟ معنا دا چې ټولې نیکۍ به ترې واخلي.

امام قرطبي وايي: دغه حديث په دې دلالت کوي چې د غازي په اهل کې خيانت تر نورو خيانتونو ستر دی، ځکه چې په نورو خيانتونو کې خيانت کړی شوي (مخون) لپاره دا اختيار نشته چې د خائن له نيکيو څخه څومره چې غواړي هغومره واخلي، بلکې يوازې د خيانت په اندازه نيکي اخيستلای شي،خو دلته چې دا مجاهد د خائن څومره نيکۍ اخلي، هغومره اخيستلی شي.

حضرت أنس رضی الله عنه فرمايي: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَكُنْ يَدْخُلُ بَيْتًا بِالْمَدِينَةِ غَيْرَ بَيْتِ أُمِّ سُلَيْمٍ إِلَّا عَلَى أَزْوَاجِهِ فَقِيلَ لَهُ، فَقَالَ: «إِنِّي أَرْحَمُهَا قُتِلَ أَخُوهَا مَعِي».

ژباړه: رسول الله صلی الله علیه وسلم به په مدينه منوره کې د ام سليم رضي الله عنها له کوره پرته د بل هيچا کورته نه ننوت، چا ترې (هلته د ډير ورتلو) پوښتنه وکړه، نو نبی علیه السلام په جواب کې وفرمايل: په هغې مې زړه سوځي ځکه چې د هغې ورور له ما سره شهید شوی دی، أم سليم رضي الله عنها د رسول الله صلی الله علیه وسلم رضاعي خاله وه او ورورېې حرام بن ملحان د بئر معونة په واقعه کې شهيد شوی و.

نو امير ته لازمه ده چې د خپلو لښکرو او د هغوی د اولادونو او کورونو احوال پرسي وکړي او د هغوی اړتياوې ورته پوره کړي، څوک چې دده تر امر لاندې شهيد

شوي وي، تر خپله توانه د هغو د اولادونو تکفل وربانديې واجب دی، دغه کړنلاره له جهاد سره د مجاهدينو رغبت زياتوي او د الله تعالی په لاره کې خپل سرونه قربانول ورته اسانه کوي.

## دقوم پالنې بدوالی

الله تعالی فرمايي: «يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّا خَلَقْنَاكُم مِّن ذَكَرٍ وَأُنثَىٰ وَجَعَلْنَاكُمْ شُعُوبًا وَقَبَائِلَ لِتَعَارَفُوا إِنَّ أَكْرَمَكُمْ عِندَ اللَّهِ أَتْقَاكُمْ إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ خَبِيرٌ». (الحجرات ١٣)

ژباړه: اې خلکو! بېشکه مونږ تاسو له يوه سړي او يوې ښځې پيدا کړي ياست او تاسو مو برخې برخې او قبيلې ګرځولي ياست، د دې لپاره چې يو بل سره وپېژنئ، بېشکه د الله په نزد په تاسو کې ډېر عزتمن، ستاسو زيات پرهېزګار دی بېشکه الله ښه پوه، ښه خبردار دی.

معنا دا، چې په قومونو او قبيلو ويشل د دې لپاره دي تر څو د ميراث او ديت پېژندنه وشي، نه دا چې يو په بل باندې عزتمن وبلل شي، ځکه تر ټولو عزتمن هغه څوک دی چې په تقوی کې لوړ وي، نو په پلرونو، نيکونو، قومونو او قبيلو فخر کول ناسم کار دی.

حضرت عقبة بن عامر رضي الله عنه روايت کوي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: ان أَنْسَابَكُمْ هَذِهِ لَيْسَتْ بِمَسَبَّةٍ عَلَى أَحدٍ، كُلُّكُمْ بَنُو آدَمَ، طَفُّ

الصَّاعِ لَمْ تَمْلَئُوهُ، لَيْسَ لِأَحَدٍ عَلَى أَحَدٍ فَضْلٌ إِلَّا بِدِينٍ أَوْ تَقْوَى وَكَفَى بِالرَّجُلِ أَنْ يَكُونَ بَذِيًّا بَخِيلًا فَاحِشًا» (احمد:١٧٤٤٦)

ژباړه: دغه ستاسو نسبونه هيڅ اته د پيغور او سپکاوي لامل نشي ګرځېدلی تاسو ټول د آدم اولاده یاست، داسې یاست لکه خالي پيمانې چې ډکې کړې مو نه وي. هيڅ يوه لره په بل بهتري نشته، مګر په ديانت او تقوی سره ، د يوه انسان د بدي لپاره د هغه عبث ګويي، بخل او بد ردويل بس دي.

امام زهري وايي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي: مَا دَخَلَ فِي رَجُلٍ مِنَ الْعَصَبِيَّةِ شَيْءٌ إِلَّا خَرَجَ مِنْهُ مِنَ الْإِيمَانِ مِثْلَ مَا دَخَلَ فِيهِ مِنَ الْعَصَبِيَّةِ». (ابوداوود في مراسله٤٨٠)

ژباړه: په يو چا کې چې څومره عصبيت (قومپالنه) پيدا کيږي په همدومره اندازه ترې ايمان وځي .

له بنت واثلة بن الاسقع څخه روايت دی: أَنَّهَا سَمِعَتْ أَبَاهَا، يَقُولُ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ! مَا الْعَصَبِيَّةُ؟ قَالَ: «أَنْ تُعِينَ قَوْمَكَ عَلَى الظُّلْمِ». (ابوداود، رقم: ٥١١٩)

ژباړه: د واثلة لور له خپله پلاره وايي چې ويل يې: ما له رسول الله عليه السلام څخه پوښتنه وکړه، چې عصبيت څه شی دی؟ رسول الله صلی الله عليه وسلم راته وفرمايل: چې په ظلم کې د خپل قوم ملاتړ وکړې. (ابوداود: ٥١١٩)

د عبد الله بن مسعود زوی عبد الرحمن رضی الله عنهم له خپله پلاره روایت کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم و فرمایل: من نَصَرَ قَوْمَهُ عَلَى غَيْرِ الْحَقِّ، فَهُوَ كَالْبَعِيرِ الَّذِي رُدِّيَ، فَهُوَ يُنْزَعُ بِذَنَبِهِ». (ابوداود: ٥١١٧ )

ژباړه: څوک چې په باطله لارکې د خپل قوم او ټبر ملا تړ کوي د هغه اوښ په شان دی چې په کنده یا کوهي کې لوېدلی وي او تر لکۍ را کش کول کیږي، معنا دا، چې ځان دا سې هلاکوي لکه هغه اوښ چې په کوهي کې ولوېږي تر لکۍ راکشول کیږي، ځکه دا د اوښ نجات نشي تضمینولای چې د لکۍ په را کشولو دې له کوهي را بهر او وژغورل شي، نو دغه کس هم نجات نشي موندلی.

## همغږي او یووالی

مجاهدینو ته لازمه ده چې په خپلو کارو کې متحد واوسي، یووالی مراعات کړي او خپل نظم وساتي.

الله تعالی فرمایي: وَاعْتَصِمُوا بِحَبْلِ اللهِ جَمِيعًا وَلَا تَفَرَّقُوا وَاذْكُرُوا نِعْمَتَ اللهِ عَلَيْكُمْ إِذْ كُنتُمْ أَعْدَاءً فَأَلَّفَ بَيْنَ قُلُوبِكُمْ فَأَصْبَحْتُم بِنِعْمَتِهِ إِخْوَانًا وَكُنتُمْ عَلَى شَفَا حُفْرَةٍ مِّنَ النَّارِ فَأَنقَذَكُم مِّنْهَا كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللهُ لَكُمْ آيَاتِهِ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ (آل عمران ١٠٣)

ژباړه: او تاسو د الله په رسۍ (تړول) په جمع سره منګولې ولګوئ او سره بېلېږئ مه، د الله (هغه) نعمتونه دریاد کړئ چې پر تاسو باندې شوي دي، کله چې تاسو د ښمنان وئ، بیا الله تعالی ستاسو د زړونو تر مینځ جوړښت راوست، نو د

هغه په (دې) نعمت سره تاسو ورونه شوئ او تاسو له اور نه د ډکې کندې په غاړه واست، تاسو یې له هغه نه وژغورلاست، همدارنګه الله تعالی تاسو ته خپل آیتونه بیانوي، د دې لپاره چې تاسو نېغه لار ومومئ.

مجاهدين بايد په هيڅ يوه کار کې اختلاف ونکړي، خو که اختلاف راتلو نو دا به يا په شرعي کار کې وي يا په سياسي امورو کې، نو دوی بايد په شرعي امورو کې علماء کرامو او په سياسي چارو کې خپلو اميرانو ته رجوع وکړي، لکه چې الله تعالی فرمايي: وَمَا أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ إِلَّا رِجَالًا نُّوحِي إِلَيْهِمْ فَاسْأَلُوا أَهْلَ الذِّكْرِ إِن كُنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ. (النحل: ٤٣)

ژباړه: او مونږ له تا نه مخکې نه دي لېږلي مګر سړي، چې مونږ هغوی ته وحي کوله، نو تاسو د علم له خاوندانو پوښتنه وکړئ که چېرې په څه نه پوهېږئ.

دغه رنګه يو بل ځای الله جل جلاله فرمايي:

﴿ يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُوْلِي الْأَمْرِ مِنْكُمْ فَإِنْ تَنَازَعْتُمْ فِي شَيْءٍ فَرُدُّوهُ إِلَى اللهِ وَالرَّسُولِ إِنْ كُنتُمْ تُؤْمِنُونَ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ ذَلِكَ خَيْرٌ وَأَحْسَنُ تَأْوِيلًا. (النساء ٥٩)

ژباړه: اې د ايمان خاوندانو! د الله تعالی او د رسول صلی الله عليه وسلم خبره منئ او د هغو هم چې په تاسو اميران ټاکل شوي دي، که چېرې ستاسو په خپل منځ کې په يو شي باندې جګړه راغله، نو هغه (شی) الله او د هغه رسول ته راجع کړئ، که

په الله او په ورځ د آخرت ایمان لرونکي یاست، دا (کار) ډېر غوره دی او د انجام په لحاظ ډېر ښه دی.

د مجاهدینو ترمنځ اختلاف د دوی قوت او هیبت له منځه وړي او هغه وېره چې له دوی څخه د دښمن په زړه کې پیدا ده ختموي، لکه چې الله تعالی فرمايي: وَأَطِيعُوا اللّٰه وَرَسُولَهُ وَلَا تَنَازَعُوا فَتَفْشَلُوا وَتَذْهَبَ رِيحُكُمْ وَاصْبِرُوا إِنَّ اللّٰه مَعَ الصَّابِرِينَ. (الانفال ٤٦)

ژباړه: او تاسو د الله او د هغه د رسول اطاعت کوئ، په خپل مینځ کې جګړه مه کوئ (ګنې) نو بې زړه به شئ او ستاسو زور به لاړ شي او صبر کوئ، بېشکه الله د صبر کوونکو ملګری دی.

## د ولس د حقوقو ساتنه

په هر امیر لازمه ده چې د ولس او رعیت د حقونو ساتنه وکړي.

له حضرت عبدالله ابن عمر رضی الله عنه څخه روایت دی چې له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه مي واورېدل: كُلُّكُمْ رَاعٍ وَمَسْئُولٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ فَالْإِمَامُ رَاعٍ وَهُوَ مَسْئُولٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ وَالرَّجُلُ فِي أَهْلِهِ رَاعٍ وَهُوَ مَسْئُولٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ وَالْمَرْأَةُ فِي بَيْتِ زَوْجِهَا رَاعِيَةٌ وَهِيَ مَسْئُولَةٌ عَنْ رَعِيَّتِهَا وَالْخَادِمُ فِي مَالِ سَيِّدِهِ رَاعٍ وَهُوَ مَسْئُولٌ عَنْ رَعِيَّتِه. (بخاري، رقم: ٥١٨٨)

ژباړه: هر يو ستاسې شپون دی او د خپل رعیت پوښتنه به ترې کېږي، امام شپون دی د رعیت په اړه به پوښتنه ترې کېږي، سړی د خپل اهل شپون دی د اهل په

باره کې به پوښتنه تر کېږي، ښځه د مېړه په کورکې شپنه ده او د خپل کور او څه چې په دې کور کې دي د هغو په اړه به تر پوښتنه کېږي، خادم د خپل بادار په مال کې شپون دی او په دې اړه به ترې پوښتنه کېږي.

بل ځای ام المؤمنين عائشة صديقه رضي الله عنها روايت کوي چې له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه مې واورېدل: « اللّٰهُمَّ مَنْ وَلِيَ مِنْ أَمْرِ أُمَّتِي شَيْئًا فَشَقَّ عَلَيْهِمْ فَاشْقُقْ عَلَيْهِ وَمَنْ وَلِيَ مِنْ أَمْرِ أُمَّتِي شَيْئًا فَرَفَقَ بِهِمْ فَارْفُقْ بِهِ ». (رواه مسلم: ۱۸۲۸)

ژباړه: یاالله! چا ته چې زما د امت چارې وسپارل شي او دوی ورسره سختي وکړي، الهي ته هم له هغه سره سختي وکړې او چا ته چې زما د امت چارې وسپارلې شي او هغوی ورسره نرمي وکړي، الهي ته هم ورسره نرمي وکړې.

ابو مريم ازدی وايي، چې زه معاويه رضي الله عنه ته ورغلم نو ده رانه پوښتنه وکړه ما ورته وويل: یو حدیث شریف مې اورېدلی، هغه به درته ووایم، ما له رسول الله څخه اوريدلي دي: «من ولاه الله شيئا من امرالمسلمين فاحتجب دون حاجتهم وخلتهم وفقرهم احتجب الله عنه دون حاجته وخلته وفقره» قال: فجعل رجل على حوائج الناس. (ابوداود، رقم: ۲۹۴۸)

ژباړه: يو چاته چې الله تعالی د مسلمانانو د چارو واکې وسپاري او هغه بيا د دوی پرمخ دروازې وتړي او حاجتونه يې نه پوره کوي، نو الله تعالی به هم د دوی په وړاندې خپلې دروازې وتړي او حاجتونه به يې نه ترسره کوي، ابو مريم وايي، چې

معاویه رضي الله عنه سمدستي يو سړی د خلکو د حاجتونو د پوره کولو (د سمع شکایات) لپاره مقرر کړ.

نو امیرانو ته په کار ده چې له خلکو څخه ځانونه پټ نه کړي، بلکې د دوی د حال احوال پوښتنه وکړي، د مظلوم لاس نیوی وکړي او د ظالم لاس لنډ کړي.

لکه د حضرت انس رضی الله عنه په روایت کي چې راځي وايې رسول الله علیه السلام وفرمایل: انْصُرْ أَخَاكَ ظَالِمًا أَوْ مَظْلُومًا. (رواه البخاري، ۲٤٤۳) ژباړه: د خپل ورور مرسته وکړه که ظالم وي او که مظلوم، يعنی، د ظالم مرسته دا ده، چې له ظلم څخه يې را وګرځوې.

د امارت کارکوونکي باید د هر چا خبره د بل چا د جرم او جنایت په هکله ونه مني، ځکه کېدای شي د هغوی تر منځ پخوانی عداوت وي، بلکې په کار ده چې پخپله ښه پلټنه وکړي او یا بل امین څوک وګوماري چې حال معلوم کړي، الله تعالی فرمايي:

﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنْ جَاءَكُمْ فَاسِقٌ بِنَبَإٍ فَتَبَيَّنُوا أَنْ تُصِيبُوا قَوْمًا بِجَهَالَةٍ فَتُصْبِحُوا عَلَى مَا فَعَلْتُمْ نَادِمِينَ (الحجرات ٦)

ژباړه: اې د ایمان خاوندانو! که تاسو ته کوم فاسق (بدکار سړی) خبر راوړي، نو تاسو ښه تحقیق کوئ، په دې چې تاسو به یو قوم ته په ناخبري سره تکلیف ورسوئ، بیا به تاسو په خپلو کړو باندې پښېمانه شئ.

خليل بن احمد وايي: څوک چې تا ته چغلي کوي هغه ستا چغلي بل ته هم کوي او څوک چې تا ته د بل چا عيب راوړي، ستا عيب هم بل چا ته وړي.

خو لکه څنګه چې په اميرانو د ولس د حقونو ساتنه لازمه ده، همداسې اميران په ولس حقونه لري، نبی عليه السلام فرمايي:

عَـنْ أَبِي هُرَيْـرَةَ قَـالَ قَـالَ رَسُـولُ اللهِ -صـلى الله عليـه وسـلم- « الدِّيـنُ النَّصِيحَةُ» . ثَـلاَثَ مِـرَارٍ، قَـالُوا يَـا رَسُـولَ اللهِ لِمَـنْ قَـالَ « لِلَّهِ وَلِكِتَابِـهِ وَلأَئِمَّـةِ الْمُسْلِمِينَ وَعَامَّتِهِمْ». رواه ترمذی

ژباړه: له حضرت ابو هريرة رضی الله عنه څخه روايت شوی، چې نبی عليه السلام وويل: دين نصيحت دی، درې ځله يې دا توري وويل، هغوی (صحابه وو رضی الله عنهم) ورته وويل، اې د الله تعالی رسوله (صلی الله عليه وسلم)! د چا لپاره؟، نبی عليه السلام وويل: د الله تعالی، د هغه د کتاب، د مسلمانانو د اميرانو او عامو مسلمانانو لپاره، (دين نصيحت دی).

نصيحت هغو الفاظو ته ويل کيږي، چې د منصوح له (مخاطب) د خير او ښېګڼې اراده پکې شوې وي، نصيحت او نصح په اصل کې د صميميت او خلوص په معنا سره دی، د مسلمان مشرتابه خواخوږي داده، چې په حق کې د هغوی پيروي او تابعداري وشي او که اړتيا پېښه شوه، په بشپړ ادب او درناوي هغوی د حق لوري ته راوبلل شي، علامه خطابی رحمه الله وايي، د مسلمانو مشرانو لپاره خواخوږي داده، چې په هغوی پسې لمونځ وکړئ، له هغوی سره يو ځای په جهاد کې برخه

و اخلئ، هغوی ته صدقې او زکات ور ادا کړئ، د هغوی لپاره باید له الله تعالی څخه د خیر او ښېګڼې دعا وغوښتله شي، که له هغوی څخه ظلم او یا فساد څرګند شي په خلاف یې باید توره را وانه خیستلای شي، د رناوی یې باید وشي او که د الله تعالی نافرماني نه وه، د امر اطاعت یې لازم دی.

# د اسلامي حکومت (خلافت او امارت) ارزښت

دهغه خليفه او سلطان له تسلط پرته چې د اسلام په اساس ولاړ وي شرعي احکامات په بشپړه توګه نشي تطبيق کېدلی، قرآن کريم د الله تعالی له لوري راليږل شوی يو بشپړ نظام دی، چې په هغه کې د خلکو مصالح، معاملات، عقيده، جهاد، اوامر، نواهي، حدود، تربيه، امر بالمعروف، نهی عن المنکر، اخلاق، آداب او هر څه موجود دي او د دې ټولو تطبيق تر يوه داسې اسلامي حکومت پورې تړلي، چې په رأس کې يې داسې خليفه او سلطان وي، چې هغه د الله تعالی را ليږل شوی قانون د خپل حکومت په مټ پلی او نافذ کړي.

کله چې د فرضي احکاماتو پلي کېدل تر اسلامي نظام مربوط شول، نو د اسلامي نظام راوستل فرض کيږي، د اصولو ستره قاعده ده "مالايتم الواجب الابه فهو واجب" يعنی که واجب امر تر هر څه موقوف شو، هغه موقوف عليه هم واجب ګرځي.

الله تعالی فرمايي: إِنِّي جَاعِلٌ فِي الأَرْضِ خَلِيْفَةً. [البقرة].

ژباړه: زه په ځمکه کې د خليفه ګرځوونکی يم، يعنی په ځمکه کې خليفه پيدا کوم. امام قرطبي رحمه الله په خپل تفسير کي د دغه آيت اړوند وايي: "هذه الآية أصلٌ في نصب إمامٍ وخليفةٍ يُسمعُ له ويطاعُ؛ لتجتمع به الكلمةُ؛ وتنفذ به أحكامُ الخليفة. ولا خلافَ في وجوب ذلك بين الأُمة ولا بين الأئمّة إلا ما روي عن الأصَمِّ- أبو بكرٍ الأصم من كبارِ المعتزلة... ودليلُنا قَوْلُ اللهِ تَعَالَى: (إِنِّي جَاعِلٌ فِي الأَرْضِ خَلِيْفَةً) وقَوْلُهُ تَعَالَى: (يَا دَاوودُ إِنَّا جَعَلْنَاكَ خَلِيفَةً فِي الاَرْضِ) وقال:

(وَعَدَ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا مِـنْكُمْ وَعَمِلُـوا الصَّـالِحَاتِ لَيَسْـتَخْلِفَنَّهُم فِي الأرض) أي يجعلُ منهم خلفاءَ، إلى غيرِ ذلك من الآيِ".

ژباړه: دغه آيت د داسې امام او خليفه په درولو کې اصل دی، چې خبره يې واورېدل شي او اطاعت يې وشي، ترڅو د مسلمانانو يو والی پرې راشي او د خلافت احکام پرې نافذ شي، نو دې په واجب والي کې هيڅ اختلاف نشته، نه په امت او نه هم په امامانو کې، مګر يوازې ابوبکر اصم چې له سترو معتزله وو څخه دی وايي، چې واجب نه دی.

زموږ لپاره دليل د الله تعالی دا قول دی، چې فرمايي: زه په ځمکه کې د خليفه رامنځته کوونکی يم، الله تعالی فرمايي: اې داوده (عليه السلام)! زه تا په ځمکه کې خليفه ګرځوم " بل ځای " فرمايي: الله تعالی په تاسو کې له هغو کسانو سره وعده کړې چې ايمان يې راوړی او نېک اعمال يې ترسره کړي، چې دوی به خامخا په ځمکه کې خليفه ګان (واکمنان) کړم، او همداسې نور آيتونه هم موجود دي، چې د خلافت په قيام دليل دي.

امام قرطبی رحمه الله وايي: کله چې د خليفه د ټاکلو په سر د انصارو او مهاجرينو ترمنځ اختلاف پېښ شو، انصارو وويل، چې زموږ څخه به هم يو امير وي او ستاسو څخه به هم يو امير وي، حضرت ابوبکر صديق، عمر فاروق او مهاجرينو رضی الله عنهم بيا قناعت ورکړ، هغوی هم له خپلې خبرې وګرځېدل او د حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه په خلافت يې اتفاق وکړ، نو که چيرته خلافت واجب نه وای، نو ولې به د خلافت

په اړه دومره مباحثه او مناظره کېدلای، ځکه یو ځوک ویلای شي، چې که خلافت واجب نه وای، نو بیا به ولې د هغوی ترمنځ په غیر واجب امر کې منازعه راتللی.

محمد عمر النسفی رحمه الله په خپل کتاب العقائد کې لیکي:

والمسلمون لا بد لهم من إمام يقوم بتنفيذ أحكامهم وإقامة حدودهم وسدّ ثغورهم وتجهيز جيوشهم وأخذ صدقاتهم وقهر المتغلبة المتلصصة وقطاع الطريق وإقامة الجمع والأعياد وقبول الشهادات القائمة على الحقوق وتزويج الصغار والصغيرات الذين لا أولياء لهم وقسمة الغنائم". ژباړه: مسلمانان باید امام ولري، چې د هغوی احکام نافذ کړي، حدود قائم کړي، پولې یې وساتي، لښکرې یې برابرې کړي، د مسلمانانو صدقات (عشر او زکات) واخلي، د ظالمانو، غاصبانو، غلو او لاري شکوونکو مخه ونیسي، د جمعو او اخترونو لمونځونه قائم کړي، د خلکو په منځ کې د جګړو مخه ونیسي، د حقوقو اړوند شهادتونه قبول کړي، د داسې وړو هلکانو او انجونو چې ولیان ونه لري نکاح وکړي او غنیمت تقسیم کړي او داسې نور.

ابن خلدون رحمه الله په خپله مقدمه کې وایي، د امام ټاکل واجب دي او په شریعت کې یې وجوب په اجماع د صحابه وو او تابعینو سره ثابت شوی دی، ځکه کله چې نبی علیه السلام رحلت وکړ، نو صحابه وو تر هر څه وړاندې د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه ټاکلو ته مخکې والی ورکړ، هغه زیاتوي، چې په هره زمانه کې مسلمانانو خپل امیر ټاکلی او په یوه زمانه کې هم مسلمانان له امیر پرته نه دي پاته شوي او دا اجماع د امام په درولو دلیل ده.

علماء کرام وایي: د امام درول د دین له اهمو واجباتو څخه دي، چې صحابه کرامو رضی الله عنهم د نبی علیه السلام تر دفن وړاندې خلیفه وټاکه او بیا یې وروسته نبی علیه السلام دفن کړ، چې له دې څخه هم د خلافت او امارت د قیام اهمیت څرګندیږي، په دې اړوند د علماوو زیات اقوال راغلي دي، چې هیڅوک هم ورڅخه انکار نشي کولای.

که اسلامي واکمني نه وي، بیا په قرآن کریم او احادیثو کې راغلي ټول شرعي احکامات معطل پاته کیږي، سره له دې، چې د دغه احکامات د تنفیذ لپاره راغلي دي نه د معطل کېدلو لپاره، نو د مجاهدینو له لوري د اسلامي امارت د قیام لپاره هلې ځلې د دین د یوه تر ټولو اهم واجب د عملي کولو لپاره دي.

## مجاهدین دې په عشر او زکات کې بې ځایه تصرف نه کوي

مجاهدین باید د مسلمانانو له لوري ورکړل شوي صدقات لکه عشر، زکات او داسې نور په مناسبو ځایونو کې مصرف کړي، په دغو مالونو کې په خپل سر له شخصي استعمال او بې ځایه مصرف څخه ځانونه وساتي، نبی علیه السلام فرمایي:

عَنْ خَوْلَةَ الأَنْصَارِيَّةِ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ : سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «إِنَّ رِجَالًا يَتَخَوَّضُونَ فِي مَالِ اللهِ بِغَيْرِ حَقٍّ فَلَهُمُ النَّارُ يَوْمَ القِيَامَةِ ». (رواه البخاري) ژباړه: له حضرت خوله رضی الله عنها څخه روایت شوی، چې وایي، ما له نبی علیه السلام څخه واورېدل، چې ویل یې: ځینې کسان د الله تعالی په مال (زکات، عشر، غنیمت، فئ) کې بې ځایه تصرف کوي، نو دوی لره د قیامت

په ورځ اور (دوزخ)دی، ابن حجر رحمه الله وایي، چې له دې څخه مطلب دادی، چې دوی د مسلمانانو په مالونو کې په باطله او ناحقه تصرف کوي.

نبی علیه السلام فرمایي:

عن خولة بنت قيس رضى الله عنها قالت سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: إِنَّ هَذَا الْمَالَ خَضِرَةٌ حُلْوَةٌ مَنْ أَصَابَهُ بِحَقِّهِ بُورِكَ لَهُ فِيهِ ، وَرُبَّ مُتَخَوِّضٍ فِيمَا شَاءَتْ بِهِ نَفْسُهُ مِنْ مَالِ اللَّهِ وَرَسُولِهِ ، لَيْسَ لَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِلَّا النَّارُ. (رواه الترمذي)

ژباړه: حضرت خوله رضی الله عنها وایي، چې ما له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه واورېدل، چې ویل یې: دامال شین(ښایسته) او خوندوردی، (مرقات لیکي، ځکه خوندوردی، چې له مشقت او ستړتیا پرته ترلاسه شوی) که چا د خپل استحقاق په اندازه وروا خیست، نو خدای پاک به برکت پکې ورواچوي، ډېر داسې خلک شته، چې د الله تعالی او د هغه د رسول په مال کې په خپله خوښه او څنګه یې چې زړه غواړي هغسې تصرف کوي، نو د قیامت په ورځ به د دوزخ له اوره پرته بل څه ورته نه وي، یعنی دوزخ ته به ورواچول شي.

مرقات لیکي، چې له «مال الله ورسوله» څخه مراد زکات او غنیمت دی، یعنی که څوک د زکات او غنیمت په مال کې بې ځایه تصرف کوي او چې څنګه یې زړه وغواړي هغسې یې مصرفوي، نو هغه ته به د قیامت په ورځ د دوزخ له اور پرته بل څه ورنه کړل شي، مجاهدین دې د داډول مالونو د مصرف په اړه له معتمدو او مشرانو علماء کرامو څخه رهنمایي غواړي چې د هر مال د مصرف ځایونه ښه ورمعلوم شي، تر

څو الله دې نه کوي داسې نشي چې مجاهد قرباني هم ورکوي او په کار کې يې نيت هم د خير وي خو کار يې په شريعت برابر نه وي او د عذاب سبب يې شي.

## له بنديانو سره بايد غوره چلند وشي

د دښمن له بنديانو سره معامله د مسلمانانو د مشر په واک کې ده، نبی علیه السلام له بنديانو سره څلور ډوله عمل ترسره کړی دی، نبی علیه السلام د بدر په ورځ نضر بن الحارث او عقبة بن ابی معیط تر نيولو وروسته ووژل او د بدر نور ټول بنديان يې د فديې په بدل کې خوشې کړل، نبی علیه السلام ثمامة بن اثال تر نيول کېدلو وروسته له بدلې او عوض پرته خوشی کړ او د سلمه بن الاکوع رضی الله عنه په مينځه يې د مسلمانانو بنديان راخوشې کړل.

الله تعالی فرمايي:

فَإِذَا لَقِيتُمُ الَّذِينَ كَفَرُوا فَضَرْبَ الرِّقَابِ حَتَّىٰ إِذَا أَثْخَنتُمُوهُمْ فَشُدُّوا الْوَثَاقَ فَإِمَّا مَنًّا بَعْدُ وَإِمَّا فِدَاءً حَتَّىٰ تَضَعَ الْحَرْبُ أَوْزَارَهَا. [محمد: ٤].

ژباړه: کله چې تاسو (اې مسلمانانو) له هغو کسانو سره مخامخ شوئ چې کفر يې کړی، نو غاړې يې ور ووهئ، چې ډېر يې ووژنئ، بيا يې بنديان کړئ، وروسته يې يا له فديې پرته همداسې خوشې کړئ، يا يې د فديې په بدل کې خوشې کړئ، چې جګړه پای ته رسيږي، يعنی تر څو له اسلام پرته بل دين پاته نشي، لکه دا قول چې مجاهد کړی، يا تر څو چې عيسی علیه السلام راځي، حسن رحمه الله وايي، تر څو له

الله تعالی پرته د بل چا عبادت ونشي، یعنی تر هغه وخته له اسیرانو سره دا درېڅو له چلند کیږي.

امام قرطبی رحمه الله وایي، چې له مَنًّا او فِدَاءً سره یې قتل ذکر نه کړ، ځکه د هغوی وژل د آیت په لومړي سر کې ذکر شول، چې غاړې یې ور ووهئ، تفسیر قرطبی وایي، چې دا آیت محکم دی او امام په هر حال کې اختیار لري، یعنی امام اختیار لري، چې له بندي سره څه ډول چلند کوي، وژني یې، د فدیې او د مسلمانانو په بدل کې یې خوشي کوي او که یې له عوض پرته پرېږدي.

قاضی د امام وکیل بلل کیږي، مجاهدین که د دښمن بندیان نیسي، نو تر څو چې قاضي فیصله نه وي پرې کړې، خپله دې په خپل سر سزا نه ورکوي، مطلب دا چې مجاهدین باید له بندیانو سره غوره چال چلند وکړي، نه شکنجه شي، نه ووهل شي، نه په لوږه او تنده و ځورول شي، نه په لمر او یخنی عذاب ورکړل شي.

سیرة ابن هشام رانقل کړي، چې کله په بدر کې مشرکین ونیول شول، نو نبی علیه السلام خپلو صحابه وو ته له بندیانو سره د ښه چلند توصیه وکړه.

کله چې صحابه وو د بنی حنیفه وو سردار او مشر ثمامه بن اثال ونیو او د مسجد نبوي په یوه ستنه (پایه) پوري یې وتاړه، تر څو یې نبی علیه السلام په اړه فیصله وکړي او یا یې په اړه دوی ته امر کوي، سهار چې نبی علیه السلام مسجد ته راووت، نو ویې لیدل، چې ثمامه په ستنه پوري تړل شوی، نو صحابه وو رضی الله عنهم ته یې وویل، ایا تاسو پوهیږئ، چې څوک مو نیولی؟

صحابه وو رضی الله عنهم ورته وویل، نه پوهیږو، اې د الله تعالی رسوله!

نو نبی علیه السلام وفرمایل: هذا ثمامة بن أثال الحنيفي،فأحسنوا أساره، یعنی دا ثمامه بن اثال دی، تاسو له خپل بندي سره ښه وکړئ، وروسته نبی علیه السلام کور ته ستون شو او ویې ویل: اجمعوا ماکان عندکم من طعام وابعثوا به الی ثمامه بن اثال... یعنی هغه خوراکه چې ستاسو سره ده، هغه راټوله کړئ او ثمامه بن اثال ته یې ولیږئ، وروسته یې امر وکړ، چې د هغه له اوښې څخه شیدې لوشئ او سهار او ماښام یې هغه ته ورکوئ، وروسته نبی علیه السلام ورته راغی او ورته یې وویل، چې اې ثمامه! ستا سره څه دي؟

هغه ورته وویل، خیر (ښېګڼه) راسره ده، که دې ووژلم، نو دوینې خاوند دې وواژه، یعنی ستاسو کسان مې وژلي، چې د هغو په قصاص کې به وژل کېږم، که دې نیکي راسره وکړه، یعنی عفوه دې راته وکړه، نو یوه شکر کوونکي ته به دې ښېګڼه کړې وي، یعنی شکر به دې ادا کړم او که دې مال ته اراده وي، نو څومره چې دې خوښه وي هغه وغواړه دربه کړل شي، نبی علیه السلام دوه ورځې همداسې پرېښود، دوه ورځې، او به او شیدې به ور وړل کېدلې.

نبی علیه السلام بیا ورته راغی او ورته یې وویل: ثمامه! ستا سره څه دی؟

هغه ورته وویل: له ما سره له هغه پرته بل څه نشته، چې ما درته وویل، بیا یې خپلې تېرې خبرې تکرار کړې، نبی علیه السلام بیا ورڅخه ولاړ او په دابله ورځ بیا ورته راغی، بیا یې ترمنځ د تیرو ورځو په څیر سوال او ځواب ترسره شو، نبی علیه السلام خپلو صحابه وو رضی الله عنهم ته وکتل او ورته یې وویل، ثمامه خلاص کړئ، هغوی هم خلاص کړ، سره له دې، چې ثمامه د نبی علیه السلام د قتل اراده

کړې وه، صحابه یې هم په شهادت رسولي وو، او نبی علیه السلام د هغه وینه هدر ګرځولې وه او په ټولو صحابه وو کې یې د دې اعلان هم کړی و.

ثمامه بن اثال تر خوشي کېدلو وروسته، چې له مسجد نبوی څخه ووت بیرته راستون شو او ایمان یې راوړ. (صور من حیاة الصحابه)

صحابه وو رضی الله عنهم له ثمامه بن اثال سره غوره چلند وکړ، خو په دغو ځلورو ورځو کې یې یوازې هغه تړلی و، تر څو ونه تښتي او یا صحابه وو رضی الله عنهم ته کوم زیان ونه رسوي، نو مجاهدین هم باید بندیانو ته تعذیبونه ورنه کړي، بلکې یوازې یې تړل ورته جائز دي او یا یې باید په یوه داسې کوټه کې واچوي، چې ونه تښتي او یا مجاهدینو ته کوم زیان ونه رسوي.

الله تعالی فرمایي: وَيُطْعِمُونَ الطَّعَامَ عَلَىٰ حُبِّهِ مِسْكِينًا وَيَتِيمًا وَأَسِيرًا، یعنی دغه نیکان سره له دې، چې خپله یې ډوډۍ ته زړه کیږي، خو مسکینانو، یتیمانو او بندیانو ته یې ورکوي، تفسیر طبري وایي، له اسیر څخه مراد یا د دار حرب هغه حربي کافر دی، چې په زوره ونیول شي، یا ور څخه مراد هغه څوک دی، چې هغه له اهل قبلې څخه وي او د یوه حق له امله نیول شوی او بندي شوی وي، نو الله تعالی د دغو نېکانو کسانو ستاینه کړې، چې د غو دریځ ډوله خلکو ته ډوډۍ ورکوي.

په اهل قبله وو کې هغه بندیان هم شاملیږي، چې د جنایي جرمونو مرتکب شوي وي، نو باید د قاضي له حکم وړاندې کومه سزا ورنه کړل شي او چې کله یې بندیخانې ته بیایي هم غوره اخلاق ورسره وکړي او په عزتمنده طریقه یې بوځي.

د بنی قریظه وو د بندیانو په اړه نبی علیه السلام فرمایلي: قال علیه السلام في بنی قريظه بعدما احترق النهار في يوم عاصف لا تجمعوا عليهم حر هذا اليوم و حر السلاح، قيلوهم حتى يبردوا ... (السير الكبير لامام محمد بن الحسن الشيبانی)

ژباړه: کله چې د اوړي په موسم کې د ورځې ګرمي زیاته شوه، نو نبی علیه السلام د بنی قریظه وو په اړه وویل، چې په هغوی باندې د دغې ورځې ګرمي او د وسلې ګرمي مه یو ځای کوئ، په قیلوله (د غرمې په ارام او استراحت) ورکولو سره ارامتیا ورکړئ، تر څو یې ګرمي له منځه ولاړه شي، په یوه بل روایت کي راغلي، چې ښه ورسره وکړئ، د غرمې ارام ورکړئ او اوبه ورکړئ، سره له دې، چې په بنی قریظه وو د مرګ حکم شوی وو، خو بیا هم نبی علیه السلام ورسره د غوره چلند حکم وکړ.

# مـجـاهـد تـه آداب

(۱) **لومړی دا، چې جهاد او اطاعت به یې د مال او دنیا لپاره نه بلکې یوازې د دین لپاره وي.**

ابـو هریره رضـی الله عنـه روایـت کـوي چـې رسـول الله صـلی الله علیـه وسـلم وفرمایـل: ثَلاثٌ لا يُكَلِّمُهُمْ الله يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَلا يَنْظُرُ إِلَيْهِمْ ولا يُـزَكِّيهِمْ وَلَهُـمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ رَجُلٌ عَلَى فَضْلِ مَاءٍ بِالْفَلاةِ يَمْنَعُهُ مِنْ ابْنِ السَّبِيلِ وَرَجُلٌ بَـايَعَ رَجُـلًا بِسِلْعَةٍ بَعْدَ الْعَصْرِ فَحَلَفَ لَهُ بِالله لَأَخَذَهَا بِكَذَا وَكَذَا فَصَدَّقَهُ وَهُوَ عَلَى غَيْرِ ذَلِكَ وَرَجُلٌ بَايَعَ إِمَامًا لَا يُبَايِعُهُ إِلَّا لِدُنْيَا فَإِنْ أَعْطَاهُ مِنْهَا وَفَى وَإِنْ لَمْ يُعْطِـهِ مِنْهَـا لَـمْ يَفِ. (رواه مسلم)

ژباړه: رسـول الله صـلی الله علیـه وسـلم فرمـایي: درې کسـان دي چـې الله بـه د قیامت پـه ورځ ورسره خبرې نه کـوي او نـه بـه د رحمت پـه نظر ورتـه ګـوري، ښـنـه بـه ورتـه نه کوي او دوی لره دردناک عذاب هم دی. یو هغه تـن چـې پـه بیدیا کـې اضـافه اوبه وي خو دی یې مسافرو تـه نه ورکوي، بل هغه چې مازدیګر یو شیز پـه چا پلوري او قسـم اخلي چې پـه دومـره یـې اخیسـتی، خـو پـه هغـو مره یې نـه وي اخیسـتي او رانیـونکی د ده پـه قسم بـاور کـوي او دریـم هغـه چـې لـه امیر سره د دنیـا لپـاره بیعت کـوي، که مال او دولت یې ورکړ نو په بیعت وفا کوي کنه یا بیعت ماتوي.

په فتح الملهم کې لیکي: پـه بیعت کې قاعده داده چې پـه امیر بـه دا خبره ږدي چې حق بـه پـالي، حـدود بـه جـاري کـوي، امـر بـالمعروف او نهـی عـن المنکـر بـه نـه

پرېږدي، دغه رنګه ليکي، چې هرهغه عمل چې په هغه سره مقصد د الله رضا نه بلکې دنيا وي نو هغه عمل فاسد او کوونکی يې ګنهګار دی.

(۲) دوهم داچې: مجاهد به ځان له غلول او خيانت څخه ساتي، ځکه چې د عمر بن خطاب رضي الله عنه څخه روايت شوی، چې وايي:

قال: لَمَّا كَانَ يَوْمُ خَيْبَرَ، أَقْبَلَ نَفَرٌ مِنْ صَحَابَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالُوا: فُلَانٌ شَهِيدٌ، فُلَانٌ شَهِيدٌ، حَتَّى مَرُّوا عَلَى رَجُلٍ، فَقَالُوا: فُلَانٌ شَهِيدٌ، فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «كَلَّا، إِنِّي رَأَيْتُهُ فِي النَّارِ فِي بُرْدَةٍ غَلَّهَا أَوْ عَبَاءَةٍ»، ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «يَا ابْنَ الْخَطَّابِ، اذْهَبْ فَنَادِ فِي النَّاسِ، أَنَّهُ لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ إِلَّا الْمُؤْمِنُونَ»، قَالَ: فَخَرَجْتُ فَنَادَيْتُ: أَلَا إِنَّهُ لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ إِلَّا الْمُؤْمِنُونَ. (مسلم، رقم: ۱۱٤)

ژباړه: کله چې د خيبر غزا وه، نو څو تنه صحابه رضی الله عنهم راغلل او ويې ويل: فلانی شهيد شو، فلانی شهيد شو، ترڅو په يوه سړي تېرېدل او ويي ويل، چې فلانی هم شهيد شو، نو رسول الله صلی الله عليه وسلم وويل: دغسې نه ده! هغه ما په اور کې وليد چې د غلول(خيانت) چپنه يا څادر يې اغوستی و، بيا رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: د خطاب زويه! لاړ شه، خلکو ته ووايه چې جنت ته به له مومنانو پرته بل څوک نه ننوځي، حضرت عمر رضی الله عنه وايي، چې زه ووتلم او آواز مې وکړ، چې ګورئ! جنت ته به يوازې مومنان داخلېږي (غلول په غنيمت کې خيانت ته وايي).

په بل حديث شريف کې حضرت ابوهريره رضي الله عنه روايت کوي چې:

قال: خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى خَيْبَرَ، فَفَتَحَ اللهُ عَلَيْنَا فَلَمْ نَغْنَمْ ذَهَبًا وَلَا وَرِقًا، غَنِمْنَا الْمَتَاعَ وَالطَّعَامَ وَالثِّيَابَ، ثُمَّ انْطَلَقْنَا إِلَى الْوَادِي وَمَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَبْدٌ لَهُ، وَهَبَهُ لَهُ رَجُلٌ مِنْ جُذَامٍ يُدْعَى رِفَاعَةَ بْنَ زَيْدٍ مِنْ بَنِي الضُّبَيْبِ، فَلَمَّا نَزَلْنَا الْوَادِيَ، قَامَ عَبْدُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَحُلُّ رَحْلَهُ، فَرُمِيَ بِسَهْمٍ، فَكَانَ فِيهِ حَتْفُهُ، فَقُلْنَا: هَنِيئًا لَهُ الشَّهَادَةُ يَا رَسُولَ اللهِ، قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «كَلَّا وَالَّذِي نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ، إِنَّ الشِّمْلَةَ لَتَلْتَهِبُ عَلَيْهِ نَارًا أَخَذَهَا مِنَ الْغَنَائِمِ يَوْمَ خَيْبَرَ لَمْ تُصِبْهَا الْمَقَاسِمُ»، قَالَ: فَفَزِعَ النَّاسُ، فَجَاءَ رَجُلٌ بِشِرَاكٍ أَوْ شِرَاكَيْنِ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ! أَصَبْتُ يَوْمَ خَيْبَرَ، فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «شِرَاكٌ مِنْ نَارٍ أَوْ شِرَاكَانِ مِنْ نَارٍ». (رواه مسلم رقم:١١٥)

ژباړه: له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره خیبر ته ووتلو او الله تعالی فتحه رانصیب کړه، په دغه وار زموږ لاس ته سره او سپین نه دي راغلي، بلکې جامې، خواړه او نور توکي مو ترلاسه کړل، بیا وادی القری خوړ ته ورسیدلو او له رسول الله سره یو مریی هم و، چې د جذام قبیلې یوه تن رفاعه بن زید چې د ضبیب له کورنۍ ځخه و ورته هبه کړی و، کله چې خوړ ته ښکته شوو نو هغه مریی د بار په پرانیستلو پیل وکړ، ناڅاپه یو غشی راغی او په هغه ولګید، نو موږ وویل، چې شهادت دې ورته مبارک وي اې د الله رسوله.

رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: دغسي نه ده، زما دې په هغه ذات قسم وي چې د محمد صلی الله علیه وسلم روح یې په ید د قدرت کې دی، هغه

شمله(يو ډول چپنه) به وربانديې اوربل کړي، چې د خيبر له غنيمتونو څخه يې تر وېش له مخه اخيستې وه، نو خلک وويرېدل چا يو شراک (د څپلۍ تسمه) او يا دوه راوړل او ويې ويل: يا رسول الله! موږ هم دغه د خيبر په ورځ اخيستي دي، رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل: شراک وي او که دوه له اوره دي.

په فتح الملهم کې وايي، چې که يو څوک له غنيمت څخه يو شی واخلي، نو واجب ده چې بېرته يې ورو سپاري او بايد ځني ومنل شي، معنا دا، چې امير يې ورڅخه قبول کړي.

(۳)مجاهد او په خاصه توګه امير ته لازمه ده چې د بيت المال له مال څخه داسې ځان وساتي لکه د يتيم له مال څخه چې سړی ځان ساتي.

کنزالعمال کې د عمر بن الخطاب رضی الله عنه په اړه ليکي چې هغه فرمايلي: الا اني انزلت من مال الله بمنزلة ولي اليتيم ان استغنيت عففت وان افتقرت اكلت بالمعروف. ژباړه: بيت المال مې د يتيم د مال په څېر ګرځولی که مې ورته اړتيا نه وه ځان ترې ساتم او که مې ورته اړتيا پيښه شوه، نو په معروفه طريقه به يې لګوم.

ابونعيم ليکي: كان عثمان يطعم الناس طعام الامارة ويدخل بيته فيأكل الخل والزيت. ژباړه: حضرت عثمان رضی الله عنه به خلکو ته د امارت له ماله خوراک ورکاوه او پخپله به کور ته لاړ هلته به يې په سرکه او غوړيو سره ډوډۍ خوړله.

(۴) مجاهد به بې ځایه مرمۍ نه ولي، ځکه چې دغه د مال ضائع کول دي، ډېر ځله داسې وي چې دلته بې ځایه وویشتل شي، خو کله چې د ضرورت ځای راشي بیا هیڅ ورسره پاته نه وي، حمزه بن اسید له خپله پلاره روایت کوي، چې کله د بدر په ورځ قریشو زموږ او موږ د قریشو لپاره صفونه وتړل نو رسول الله صلی الله علیه وسلم راته وفرمایل:

«اذا اکثبوکم فعلیکم بالنبل» کله چې درته نژدې شول (یعني یقیني وه چې ستاسو غشي دوی ته رسېږي) بیا یې ولئ، د ابوداود په روایت کې دا هم راغلي چې د غېشو ساتنه کوئ.

(۵) مجاهد ته په کار ده چې د توان هغو جنګي سامان آلاتو زده کړه ترسره کړي کوم ته چې په جهاد کې د ده ضرورت وي، الله تعالی فرمایي: وَأَعِدُّوا لَهُمْ مَا اسْتَطَعْتُمْ مِنْ قُوَّةٍ وَمِنْ رِبَاطِ الْخَيْلِ تُرْهِبُونَ بِهِ عَدُوَّ اللهِ وَعَدُوَّكُمْ وَآخَرِينَ مِنْ دُونِهِمْ لَاتَعْلَمُونَهُمُ اللهُ يَعْلَمُهُمْ وَمَا تُنْفِقُوا مِنْ شَيْءٍ فِي سَبِيلِ اللهِ يُوَفَّ إِلَيْكُمْ وَأَنْتُمْ لَا تُظْلَمُونَ [الانفال: ٦٠]

ژباړه: او (اې مسلمانانو!) څومره چې استطاعت لرئ د کم او کیف دواړو په اعتبار قوت او تړلي آسونه تیار کړئ! په دې سره به تاسو د الله دښمنان او خپل دښمنان وېروئ! له دوی پرته نور خلق (هم) چې تاسو یې نه پېژنئ، الله یې پېژني (یعني تر اوسه یې له تاسو سره دښمني نه ده په ډاګه کړې) او تاسو چې د الله په لاره کې هر څه خرچ کوئ، تاسو ته به یې پوره (بدله) درکړل شي او په تاسو به ظلم نه کېږي.

له قوت څخه مراد د هغو وسائلو زده کول دي چې په اوس وخت کې ورته اړتيا ده او دا کار په اوس وخت کې لا ډېر زيات ضروري دی، د بخارا سلطنت خو په دغه ناپوهي له لاسه ووت، پاچا له علماوو وغوښتنه وکړه چې د وخت عصري وسلې ترلاسه کړي، خو هغوی دغه کار بدعت وګاڼه او د اخيستلو اجازه يې ورنکړه، هغه و چې لويه ماته يې وخوړه او روسان ورباندې مسلط شول، هم داسې د روم له پاچا سره هم وشول هغه پخپله بت پرست و، نو ځيني مسلمانو پاچهانو ته يې وليکل چې زه د اسلام راوړلو اراده لرم او له دوی څخه يې وغوښتل چې په شراب څښلو کې ورته ځکه اجازه ورکړي چې هغه له شراب څښلو پرته ګوزاره نشوای کولای، دوی خپلو عالمانو ته استفتا وړاندې کړه، خو هغوی ورته وويل چې شراب حرام دي اجازه نشته، که د روم پاچا ايمان راوړل غواړي نو شراب څښل دې پرېږدي، هغه وويل شراب نشم پرېښودای هغسې بت پرست پاتې شو، الله دې موږ له جهالته وساتي، که دوی له ما فتوی غوښتې وای نو ما به ورته ويلي وای، چې ته اسلام راوړه او د شرابو په باره کې داعقيده وساته چې دا حرام دي، ځکه چې کله اسلام راوړي او په زړه که يې د شرابو خباثت راسي نو خپله شراب خوړل ورته خبيث عمل ښکاري. (فيض الباري)

(۶) مجاهد ته ويښ او بيدار او سپېدل پکار دي، هيڅکله د دښمن له چل او فريب نه بې غمه نشي، دښمن که څه هم ډېر کمزوری وي خو کمزوری يې ونه ګڼي او د يوه قوي دښمن په څېر اسباب ورته برابر کړي. علامه طرطوشي ليکي: د هوښيار پاچا له صفتونو يو دا ده چې دښمن کمزوری نه ګڼي که څه هم ذليل وي او ترې

غافله کيږي نه، که څه هم بې وسه وي، ځکه د پر ځله غوماشی فيل نا ارامه کولای شي.

صلابي د عمرة القضاء په بيان کې د واقدي د مغازی په حواله ويلي: چې رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ځانه سره مکمله اسلحه واخستله که څه هم د قريشو سره يې دا شرط منلی و چې مونږ به حرم ته يوازې توري را سره وړو هغه هم په پوښ کې، لکن د قريشو د غدر څخه مطمئن نه و، نو يې مکمله اسلحه د ځانه سره راوړه، خو د حرم څخه بهر د دوو سوو محافظينو مجاهدينو سره يې کښيښودله، چې که چيرې قريش غدر وکړي زمونږ اسلحه به حاضر وي. (سيرة الصلابي ج٢ص٤۴۶)

(٧) مجاهدين بايد ګړی په ګړی د دښمن د حالاتو څارنه وکړي، د عسکرو حال يې واخلي، د دښمن په ليکو کې جاسوسان وګوماري او په دې ښه پوره ځان خبر کړي چې مشران يې څوک دي؟ په دوی کې ښه جګړه ماران څوک او دوی څه ډول وسلې لري.

عنْ ابْنِ الْمُنْكَدِرِ قَالَ: سَمِعْتُ جَابِرًا يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْأَحْزَابِ : مَنْ يَأْتِينَا بِخَبَرِ الْقَوْمِ؟ فَقَالَ الزُّبَيْرُ: أَنَا، ثُمَّ قَالَ: مَنْ يَأْتِينَا بِخَبَرِ الْقَوْمِ؟ فَقَالَ الزُّبَيْرُ: أَنَا، ثُمَّ قَالَ: مَنْ يَأْتِينَا بِخَبَرِ الْقَوْمِ؟ فَقَالَ الزُّبَيْرُ: أَنَا، ثُمَّ قَالَ: إِنَّ لِكُلِّ نَبِيٍّ حَوَارِيَّ وَإِنَّ حَوَارِيَّ الزُّبَيْرُ. (رَوَاهُ الْبُخَارِيّ -٤١١٣- وَمُسْلِم)

ژباړه: ابن منکدر وايي، له حضرت جابر رضی الله عنه څخه مې واورېدل چې د احزاب جګړې په ورځ رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: د دښمن حال به څوک معلوم کړي؟ زبير رضی الله عنه وويل: زه به يې معلوم کړم، بيا يې وويل د

د ښمن حال به څوک راوړي؟ زبير رضي الله عنه وويل زه به يې راوړم، نبی علیه السلام بیا وويل، چې د ښمن حال به څوک راوړي؟ زبير رضی الله عنه ورته وويل، چې زه يې راوړم، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل: هر پيغمبر لره حواري (مؤيد او مرسته کوونکی) وي، زما حواري زبير دی.

(۸) اتم: مجاهدينو ته په کار ده چې د خپل مشر استوګنځی پټ وساتي ترڅو دښمن وربانديې ناڅاپه حمله ونه کړي، ځکه (الحرب خدعة) جګړه خو د دښمن تېر ايستل دي، همدا راز دغه ډول پيښې دښمن ته د تبليغاتي پروپاګند زمينه برابروي او د مسلمانانو د خواشينۍ لامل ګرځي، په مجاهدينو دا لازمه ده، چې د خپلو اميرانو او مشرانو ساتنه وکړي، ترڅو دښمن ورته کوم زيان ونه رسوي.

له حضرت عائشې رضی الله عنها څخه روايت شوی، هغه وايي: كان النبي ـ صلى الله عليه وسلم ـ يُحْرس حتى نزلت هذه الآية:« وَاللّٰه يَعْصِمُكَ مِنَ النَّـاسِ»، فأخرج رسول الله ـ صلى الله عليه وسلم ـ رأسَه من القبة، فقال لهم: يا أيها الناس، انصرفوا عني، فقد عصمني الله.( الترمذي)

يعنی: په نبی علیه السلام به پيره کېدله، ترڅو دغه آيت را نازل شو، الله تعالی دې له خلکو (دښمنانو) څخه حفاظت کوي... ، نو نبی علیه السلام له قبې (خېمې) سر را ووېست او هغوی ته يې وويل: اې خلکو! تاسو زما څخه ولاړ شئ، زه الله تعالی ساتلی يم.

دلته څرګنده شوه، چې صحابه کرامو رضی الله عنهم د نبی علیه السلام د ساتنې لپاره په هغه پيره کوله، ترڅو يې الله تعالی د حفاظت وعده وکړه، نو د

مسلمانانو په نورو امیرانو باید پیره او د هغوی ساتنه وشي، ځکه الله تعالی یې د ساتنې وعده نه ده کړې، نو د ښمن زیان ورته رسولی شي او له زیان څخه د خوندي کېدلو یوه لاره یې دا هم ده، چې ځای یې پټ وساتل شي او له دې سره سره باید پیره هم پرې وکړل شي، په ځانګړې توګه د غه ډول اقدامات په داسې حالاتو کې چې دا اوس دي؛ ډیر لازمي دي.

(۹) په مجاهدینو لازمه ده چې د جګړې تر پیلولو مخکې کوم نیک کار ترسره کړي، په دې باندې امام بخاري پخپل کتاب کې یو ځانګړی باب ایښی دی: بَابٌ عَمَلٌ صَالِحٌ قَبْلَ القِتَالِ وَقَالَ أَبُو الدَّرْدَاءِ: «إِنَّمَا تُقَاتِلُونَ بِأَعْمَالِكُمْ».

ژباړه: ابو درداء رضی الله عنه وایي: تاسو په خپلو اعمالو جنګیږئ یعنې نېک عملونه تاسو ته ثبات دربښي او په جګړه کې بری در په برخه کوي.

(۱۰) لسم: مجاهد ته په کار ده چې د خپل ملګري ملا وتړي، هغه یوازې دښمن ته پرېنږدي، بلکې تر هغه له مخه ځان دښمن ته ور ورسوي، ابو موسی رضي الله عنه روایت کوي، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: «المُؤْمِنُ لِلْمُؤْمِنِ كَالْبُنْيَانِ، يَشُدُّ بَعْضُهُ بَعْضًا» ثُمَّ شَبَّكَ بَيْنَ أَصَابِعِهِ. (البخاري، رقم: ٦٠٢٦).

ژباړه : یو مؤمن د بل مؤمن لپاره د تعمیر د خښتو مثال لري چې یوه یې بله ټینګوي، بیا رسول الله صلی الله علیه وسلم (د مثال په ډول) د لاسونو ګوتې یو په بل کې سره ننباسلې.

دغه رنګه د انصارو په مدح کې الله تعالی فرمایي : «وَيُـؤْثِرُونَ عَلَىٰ أَنْفُسِـهِمْ ولوكان بهم خصاصة»

ژباړه: او هغوی نور (مسلمانان) په خپلو ځانونو غوره کوي که څه هم په دوی تنګسیا (لوږه) وي.

له حضرت ابو هریره رضی الله عنه څخه روایت دی چې: جاء رجل إلى النبي صلى الله عليه وسلم فقال: إني مجهود فأرسل إلى بعض نسائه فقالت: والذي بعثك بالحق ما عندي إلا ماء ثم أرسل إلى أخرى فقالت مثل ذلك حتى قلن كلهن مثل ذلك: لا والذي بعثك بالحق ما عندي إلا ماء فقال النبي صلى الله عليه وسلم: من يضيف هذا الليلة ؟ فقال رجل من الأنصار: أنا يا رسول الله فانطلق به إلى رحله فقال لامرأته: أكرمي ضيف رسول الله صلى الله عليه وسلم وفي رواية قال لامرأته هل عندك شيء ؟ فقالت: لا إلا قوت صبياني قال: فعلليهم بشيء وإذا أرادوا العشاء فنوميهم وإذا دخل ضيفنا فأطفئي السراج وأريه أنا نأكل فقعدوا وأكل الضيف وباتا طاويين فلما أصبح غدا على النبي صلى الله عليه وسلم: فقال: لقد عجب الله من صنيعكما بضيفكما الليلة. (متفق عليه)

ژباړه: یو سړی رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راغی او ویې ویل: زه په مشقت یم یعني له لوږې په تکلیف یم، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم له خپلو مېرمنو څخه یوې ته حال ورکړ چې دغه مېلمه ته ډوډۍ ورکړي، هغې وویل: زما دې قسم وي په هغه ذات چې ته یې په پیغمبرۍ مبعوث کړی یې له ما سره له اوبو

پرته بل څه د خوراک نشته، نبي علیه السلام بلې مېرمنې ته مراجعه وکړه هغې هم کټ مټ همداسې ځواب ورکړ، تر دې چې ټولو ازواجو مطهراتو همدا وویل، چې زما دې قسم وي په هغه ذات چې ته یې په پیغمبرۍ مبعوث کړی یې له ما سره له اوبو پرته بل څه د خوراک نشته، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم صحابه وو ته مخ کړ او ویې ویل: څوک به نن شپه دغه مېلمه ته ډوډۍ ورکړي؟ د انصارو له جملې یوه صحابي وویل: زه، اې د الله رسوله! نو هغه انصاري میلمه خپل کور ته بوتلو او خپلې مېرمنې ته یې وویل، د رسول الله صلی الله علیه وسلم د میلمه اکرام وکړه او په بل روایت کې راځي، چې دغه انصاري سړي له خپلې مېرمنې وپوښتل: آیا د خوراک د رسره کوم شی شته؟ میرمنې یې ځواب ورکړ، بل شی نشته یوازې د خپلو بچیانو خوراکه ده.

صحابي خپلې مېرمنې ته وویل: ما شومان په څه شي غلط کړه او چې کله هغوی د شپې د ډوډۍ اراده وکړي، نو ویده یې کړه، کله چې مېلمه کور ته را داخل شي ،څراغ مړ کړه او موږ به مېلمه ته( د ژامو په اواز سره ) داسې ښیو چې موږ هم ګوا کې خوراک کوو، نو دوی همداسې وکړل، مېلمه ډوډۍ وخوړله او دوی دواړه وږي ویده شول، کله چې سبا شو او رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راغلل، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل: تاسو چې د شپې له میلمه سره کوم چلند وکړ په یقین سره د الله تعالی ډیر خوښ شو او ښه یې وباله.

امام ترمذي د ابوهریرة رضی الله عنه په روایت حدیث راوړی چې یوه انصاري ته د شپې مېلمه راغی خو د ده په کور کې د عیال له ډوډۍ پرته د خوړلو بل څه نه و ، نو هغه

خپلې مېرمنې ته وويل چې ماشومان ويده کړه ډيوه مړه کړه او مېلمانه ته هغه ډوډۍ راوړه چې په کورکې شته، بيا دا آيت نازل شو « وَيُؤْثِرُونَ عَلَى أَنْفُسِهِمْ».

و قال ابن عمر أهدى لرجل من أصحاب رسول الله صلى الله عليه وسلم رأس شاة فقال: إن أخي فلاناً وعياله أحوج إلى هذا منا، فبعثه إليهم، فلم يزل يبعث به واحد إلى آخر حتى تداولها سبعة أبيات، حتى رجعت إلى أولئك، فنزلت: «وَيُؤْثِرُونَ عَلَى أَنْفُسِهِمْ». ژباړه: قرطبي په خپل تفسير کې ليکي: چې ابن عمر وايي: يو چا د رسول الله صلى الله عليه وسلم يوه صحابي ته د پسه سر راووړ، هغه وويل، زما هغه پلانی ورور او د هغه اولاد تر موږ ورته ډيره اړتيا لري، نو هغوی ته يې ور ولېږه، هغه بيا بل صحابي ته واستاوه، تر دې، چې له اوو کورونو څخه ووت او بالآخره بيا هغه لومړي کورته را وليږل شو، نو بيا دغه آيت را نازل شو.

هر مسلمان په خاصه توګه مجاهد ته ښايي چې د اړتيا د رفع پروخت بل مسلمان او مجاهد پر ځان مخکې کړي.

قال أبو جهم بن حذيفة العدوي: انْطَلَقْتُ يَوْمَ الْيَرْمُوكِ أَطْلُبُ ابْنَ عَمِّيَ وَمَعِي شَنَّةٌ مِنْ مَاءٍ أَوْ إِنَاءٍ، فَقُلْتُ: إِنْ كَانَ بِهِ رَمَقٌ سَقَيْتُهُ مِنَ الْمَاءِ وَمَسَحْتُ بِهِ وَجْهَهُ، فَإِذَا أَنَا بِهِ يَنْشَغُ، فَقُلْتُ: أَسْقِيكَ؟ فَأَشَارَ: أَيْ نَعَمْ، فَإِذَا رَجُلٌ يَقُولُ: آهِ، فَأَشَارَ ابْنُ عَمِّيَ أَنْ أَنْطَلِقَ بِهِ إِلَيْهِ، فَإِذَا هُوَ هِشَامُ بْنُ الْعَاصِ أَخُو عَمْرٍو، فَأَتَيْتُهُ فَقُلْتُ: أَسْقِيكَ؟ فَسَمِعَ آخَرَ فَقَالَ: آهِ، فَأَشَارَ هِشَامٌ: أَنْ أَنْطَلِقَ بِهِ إِلَيْهِ، فَجِئْتُهُ فَإِذَا هُوَ قَدْ مَاتَ، فَرَجَعْتُ إِلَى هِشَامٍ فَإِذَا هُوَ قَدْ مَاتَ، فَرَجَعْتُ إِلَى ابْنِ عَمِّيَ فَإِذَا هُوَ قَدْ مَاتَ! (البيهقي في شعب الايمان، رقم: ٣٢٠٨)

ژباړه: ابو جهم بن حذيفه رضی الله عنه وايي، چې زه د يرموک په ورځ د زخميانو په کتار کې د خپل اکا په زوی پسې ګرځېدم او د اوبو لوښی راسره و، ما له ځان سره وويل، چې که د هغه په مری کې سا وه، يو غوړپ به وڅښي او مخ به يې پرې لوند کړم، چې ناڅاپه ورسره په داسې حال کې مخ شوم، چې وروستی ساه يې اخيستله، ما ورته وويل اوبه درکړم؟ هغه اشاره وکړه، چې هو، په دې وخت کې بل زخمي آه وکړ، د کاکا زوی مې اشاره وکړه چې هغه ته يې ورکړه، که ګورم هغه د عمرو ورور هشام بن العاص و، هغه ته مې وويل اوبه درکړم؟ زما دا خبره بل چا واورېدله او آه يې وکړ، هشام راته وويل هغه ته يې ورکړه، کله چې زه ورغلم هغه وفات شوی و بېرته په شا راوګرځېدم هشام ته چې راغلم هغه هم وفات شوی و او چې خپل د کاکا زوی ته بېرته ور رسېدم، نو هغه هم په دې تنده کې سا ورکړې وه.

دغه ده د مسلمانانو ايثار او فداکاري، چې په دغه ډول سخت وخت کې هم بل مسلمان او ملګری تر ځان غوره کوي.

(۱۱) مجاهد بايد خامخا خپل نيت سم کړي او خپل هر څه يوازې د الله تعالى لپاره کړي، چې په دې باره کې تفصيل مخکې تېر شو.

(۱۲) مجاهد بايد له قوم پرستۍ څخه ځان وساتي، د دې تفصيل هم مخکې تېر شو.

(۱۳) مجاهد ته په کار ده چې په جهادي چارو کې له چا سره نزاع ونکړي، بلکې د هغه کار امير ته وسپاري يا هغه چا ته چې ور او مستحق يې وي.

(۱۴) مجاهد ته لازمه ده چې په هغو امورو کې چې د الله تعالی معصیت نه وي د خپل امیر پوره اطاعت وکړي، د دې تفصیل هم تېر شو.

(۱۵) مجاهدینو ته په کار ده چې په خپل منځ کې مینه او محبت وکړي او په ټولو خلکو په ځانګړې توګه په بې وزلو ډېر مهربان وي، ځکه چې تاسو د هغوی د دعا په برکت په دښمن غلبه مومئ، الله تعالی د صحابه وو رضي الله عنهم په صفت کې فرمايي:

مُّحَمَّدٌ رَّسُولُ اللَّهِ وَالَّذِينَ مَعَهُ أَشِدَّاء عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَاء بَيْنَهُمْ تَرَاهُمْ رُكَّعاً سُجَّداً يَبْتَغُونَ فَضْلاً مِّنَ اللَّهِ وَرِضْوَاناً سِيمَاهُمْ فِي وُجُوهِهِم مِّنْ أَثَرِ السُّجُودِ ذَلِكَ مَثَلُهُمْ فِي التَّوْرَاةِ وَمَثَلُهُمْ فِي الْإِنجِيلِ كَزَرْعٍ أَخْرَجَ شَطْأَهُ فَآزَرَهُ فَاسْتَغْلَظَ فَاسْتَوَى عَلَى سُوقِهِ يُعْجِبُ الزُّرَّاعَ لِيَغِيظَ بِهِمُ الْكُفَّارَ وَعَدَ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ مِنْهُم مَّغْفِرَةً واجرا عظيماً . [الفتح:۲۹].

ژباړه: محمد (صلی الله علیه وسلم) د الله رسول دی او هغه کسان چې له ده سره دي، په کافرانو ډېر سخت، او په خپل مینځ کې ډېر سره مهربان دي، ته به يې وينې چې رکوع کوونکي، سجده کوونکي دي، له الله نه فضل او رضامندي غواړي، د دوی (د دینداری) نښې د سجدو له اثر نه د دوی په مخونو کې دي، دغه په تورات کې د دوی مثال دی او په انجیل کې د دوی مثال دی: لکه هغه فصل چې خپل تېغ راوباسي، بیا يې قوي کړي، بیا پېړ او کلک شي، بیا دغه (فصل) په خپلو پنډيو (او بېخونو) ودرېږي، په داسې حال چې زمېنداران (کروندګر) په تعجب کې اچوي، د دې لپاره چې په دغو سره کافران په غصه کړي، الله له هغو کسانو سره چې

ایمانیې راوړی دی او نېک عملونه یې کړي دي، چې هغه (صحابه) دي، د بخښنې او د ډېر لوی اجر وعده کړې ده.

طلحه له مصعب بن سعد رضی الله عنهم څخه روایت کوي چې: رأى سعد ان له فضل على من دونه،فقال النبي صلى الله عليه وسلم:هل تُنصرون وترزقون الا بضعفائكم. ژباړه: سعد رضی الله عنه ته داسې معلومه شوه چې په نورو کسانو غوره دی، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل تاسو ته د ضعیفانو له وجې مرسته او رزق درکول کیږي .

جریر بن عبد الله وایي، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: من لا يرحم الناس لا يرحمه الله. (ترمذي،۱۹۲۲) ژباړه: څوک چې په خلکو رحم نه کوي، الله په هغه رحم نه کوي.

(۱۶) مجاهد ته په کار ده چې په هیچا ظلم ونه کړي نه په مال کې او نه په نور څه کې، ځکه د مظلوم دعا خامخا قبلیږي، لکه په دې حدیث کې چې حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما روایت کړی، هغه وایي:

أَنَّ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم بَعَثَ مُعَاذًا إِلَى الْيَمَنِ فَقَالَ: اتَّقِ دَعْوَةَ الْمَظْلُومِ فَإِنَّهَا لَيْسَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ اللهِ حِجَابٌ. (ترمذي، ۲۰۱٤)

ژباړه: کله چې رسول الله صلی الله علیه وسلم معاذ رضی الله عنه یمن ته استاوه نو ورته ویې ویل: د مظلوم له ښیرا ځان ساته ځکه د مظلوم د ښیرا او الله

ترمنځ هيڅ حجاب نشته، نو مجاهد که فرد وي، که امير وي او که قاضي په خلکو دې ظلم نه کوي او د هغوی ترمنځ دې په عدالت فيصلې کوي.

علامه شيزري وايي: اعلم ان العدل اشرف اوصاف الملک و اقوم لدولته، لانه يَبعث على الطاعةِ، ويدعو إلى الأُلفة، وبه تصلُح الأعمال وتنمو الأموال.

ژباړه: پوه شه چې عدل د پادشاه تر ټولو غوره صفت او د ده د پاچاهي ټينګوونکی دی. ځکه عدل د خلکو د اطاعت باعث دی او خلک محبت ته رابولي، په عدل سره د خلکو اعمال اصلاح کيږي او اموال زياتيږي.

(۱۷) مجاهد بايد مېړنی او غيرتمن وي، تقوی ولري، د عفت خاوند وي، د موسساتو او شتمنو خلکو مالونو ته تمه ونه لري.

مالقي په الشهب اللامعة کې وايي: جسم الحرب الشجاعة وقلبها التدبير وعينها الحذر وجناحها الطاعة ولسانها المكيدة وقائدها الرفق وسائقها النصر!
ژباړه: د جګړې جسم مېړانه ده، زړه يې تدبير، سترګې يې بيداري، وزر يې طاعت، ژبه يې چل ول، رهنما يې نرمي او پرمخ بيوونکی يې نصرت دی.

حضرت انس رضی الله عنه روايت کوي چې:

کان رسول الله صلى الله عليه وسلم أحسن الناس وأجود الناس وأشجع الناس، قال: وقد فزع أهل المدينة ليلة سمعوا صوتًا، قال: فتلقاهم النبي صلى الله عليه وسلم على فرس لأبي طلحة عُرْيٍ وهو متقلِّد سيفه، فقال: لم تراعوا،

لم تراعوا، ثم قال رسول الله صلی الله علیه وسلم: وجدته بحرًا، یعني الفرس. (بخاري، ۲۹۰۸)

ژباړه: رسول الله صلی الله علیه وسلم تر ټولو خلکو ښایسته، تر ټولو سخي او تر ټولو غیرتمن و، یوه ورځ د مدینې منورې خلکو یو غږ واورېده او ووېرېدل، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم په داسې حال کې چې د ابو طلحه په شا لوڅي آس سپور و او توره یې په غاړه وه د دې حال د معلومولو لپاره پسې لاړ او ویل یې: لم تراعوا، لم تراعوا، مه وېرېږئ، مه وېرېږئ، بیا یې ماته وویل سمندر په لاس راغی، مطلب یې اس و.

ابن ابي الدنیا وایي، چې حسن بن علي رضی الله عنهما به ویل چې الله پاک وایي: یا ابن آدم! اذا قنعت بمارزقناک فانت اغنی الناس. ژباړه: اې انسانه! که ته په هغه رزق ځان بسیا وبولې چې ما درکړی، نو ته تر ټولو خلکو غني او سرمایه دار یې.

ابی امامه رضی الله عنه وایي، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: «أَظْهِرُوا الْيَأْسَ فَإِنَّهُ غِنًى وَإِيَّاكُمْ وَالطَّمَعَ فَإِنَّهُ فَقْرٌ حَاضِرٌ». ژباړه: خلکو ته طمعه مه کوئ همدا بې اینه او غنا ده، له طمعې ځان وساتئ! ځکه طمعه موجود او حاضر فقر ده.

لَقِيَ عَبْدُ اللهِ بْنُ سَلامٍ كَعْبَ الأَحْبَارِ عِنْدَ عُمَرَ فَقَالَ يَا كَعْبُ: مَنْ أَرْبَابُ الْعِلْمِ؟ فَقَالَ: الَّذِينَ يَعْمَلُونَ بِهِ، قَالَ: فَمَا يُذْهِبُ الْعِلْمَ مِنْ قُلُوبِ الْعُلَمَاءِ بَعْدَ إِذْ

عَقِلُوهُ وَحَفِظُوهُ؟ قَالَ: يُذْهِبُهُ الطَّمَعُ وَشَرَهُ النَّفْـسِ وَتَطَلُّـبُ الْحَاجَـاتِ إِلَى النَّـاسِ قَالَ: صَدَقْتَ.

عبد الله بن سلام رضي الله عنه له كعب الاحبار رضي الله عنه سره د عمر رضی الله عنه په مجلس کې يو ځای شو نو ورته ويې ويل: د علم خاوندان څوک دي؟ هغه ځواب ورکړ: هغه کسان چې په علم عمل کوي، بيا يې ورته وويل: له زده کړې وروسته د علماوو له زړونو څخه علم څه شی بېرته باسي؟ هغه ورته وويل: حرص، طمع او له خلکو څه غوښتل، عبد الله بن سلام رضي الله عنه ورته وويل، چې بلکل دې رښتيا وويل.

زبير بن بکار وايي: خنساء رضی الله عنها د قادسيې جګړې ته ورغله او څلور زامن هم ورسره ول، نو د شپې په پيل کې يې دوی ته وويل: اې زامنو! تاسو په خپله خوښه اسلام راوړی او پخپله خوښه مو هجرت کړی، زما دې په الله قسم وي چې تاسو ټول (دا سې يقيني) د يوه سړي زامن ياست، لکه چې د يوې ښځې زامن ياست، نه مې ستاسو له پلار سره خيانت کړی، نه مې ستاسو ماما شرمولی او نه مې ستاسو نسب بدل او شرف بدنام کړی دی. تاسو پوهيږئ چې الله له کفارو سره په جنګ کولو څومره ثوابونه په ځان منلي؟ په دې پوه شئ چې آخرت تر دنيا غوره او بهتر دی، الله تعالی فرمايي:

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اصْبِرُوا وَصَابِرُوا وَرَابِطُوا وَاتَّقُوا اللهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ. آل عمـران ژباړه: اې د ايمان خاوندانو! صبر کوئ او په صبر ټينګ اوسئ او په مورچلو کې محکم اوسئ، له الله نه وېرېږئ، چې کامياب شئ.

که سبا ان شاء الله روغ رمټ را پاڅېد لا ست، نو د کفارو جنګ ته لاړ شئ، له الله څخه په دښمنانو برى غواړئ او چې جنګ تود شي، او ريې په لمبو شي، نو ور ودانګئ او په خرپ وجنګيږئ! تاسو به يا د غنيمت او يا د تلپاتې ژوند خاوندان شئ. زامن يې د دې له نصيحت سره سم جګړې ته ووتل د جنګ ترانې يې زمزمه کولې، تر څو چې ټول شهيدان شول، کله چې خنساء رضی الله عنها ته د دوی د شهادت خبر ورسيد، ويې ويل: الله لره دې ثناء او صفت وي چې زه يې د دوی په شهادت ونازولم له الله څخه هيله لرم چې ما هم له دوی سره د خپل رحمت په انګړ کې يو ځای کړي، عمر رضی الله عنه به د خپل وفات تر وخته خنساء رضی الله عنها ته د هغې د څلورو زامنو (داولاد) وظيفه چې د يوه نفر دوه سوه درهمه وه ورکوله، رضی الله عنهم وارضاهم.

نو اې مجاهده! ته د دې صحابيې مېرمنې غيرت ته وګوره چې د زامنو په شهادت د الله حمد وايي!

(۱۸) مجاهد ته ښايي چې له علماوو او نيکانو خلکو سره ناسته ولاړه ولري، ابو هريره رضی الله عنه روايت کوي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: المرء على دين خليله، فلينظر احدكم من يخالل. (احمد، ۸۰۲۸) ژباړه: سړی د خپل انډيوال په تګلاره وي نو تاسو ګورئ چې هغه له چا سره ملګرتيا لري؟

(۱۹) مجاهد ته پکار ده چې امر بالمعروف او نهی عن المنکر او د خلکو اصلاح يې له لويو اهدافو څخه وي، له حضرت سهل بن سعد رضی الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل:

«لأعطين هذه الرَّايَةَ غَدًا رَجُلًا يَفْتَحُ الله عَلَى يَدَيْهِ»، قَالَ: فَبَاتَ النَّاسُ يَدُوكُونَ لَيْلَتَهُمْ أَيُّهُمْ يُعْطَاهَا، فَلَمَّا أَصْبَحَ النَّاسُ غَدَوْا عَلَى رَسُولِ الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، كُلُّهُمْ يَرْجُو أَنْ يُعْطَاهَا، فَقَالَ: «أَيْنَ عَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ». فَقَالُوا: يَشْتَكِي عَيْنَيْهِ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ: «فَأَرْسِلُوا إِلَيْهِ فَأْتُونِي بِهِ». فَلَمَّا جَاءَ بَصَقَ فِي عَيْنَيْهِ وَدَعَا لَهُ، فَبَرَأَ حَتَّى كَأَنْ لَمْ يَكُنْ بِهِ وَجَعٌ، فَأَعْطَاهُ الرَّايَةَ، فَقَالَ عَلِيٌّ: يَا رَسُولَ اللَّهِ أُقَاتِلُهُمْ حَتَّى يَكُونُوا مِثْلَنَا؟ فَقَالَ: «انْفُذْ عَلَى رِسْلِكَ حَتَّى تَنْزِلَ بِسَاحَتِهِمْ، ثُمَّ ادْعُهُمْ إِلَى الإِسْلاَمِ وَأَخْبِرْهُمْ بِمَا يَجِبُ عَلَيْهِمْ مِنْ حَقِّ الله فِيهِ، فَوَالله لَأَنْ يَهْدِيَ الله بِكَ رَجُلًا وَاحِدًا، خَيْرٌ لَكَ مِنْ أَنْ يَكُونَ لَكَ حُمْرُ النَّعَمِ» (البخاري، ۳۷۰۱)

ژباړه: رسول الله صلی الله عليه وسلم د خيبر په ورځ وفرمايل: زه به سبا بيرغ هغه چا ته ورکړم چې الله د ده په لاس فتح او بری ليکلی دی، الله او د الله رسول له ده سره مينه لري او دی هم له الله او د هغه له رسول سره مينه لري، نو خلکو کړی شپه چورتونه وهل چې دا بختور به څوک وي؟ سبا چې ټول پيغمبر صلی الله عليه وسلم ته راجمع شول هر چا فکر کاوه او هيله يې لرله چې بيرغ ورکړل شي، په دغه وخت کې رسول الله صلی الله عليه وسلم وويل: علي بن ابی طالب چيرته دی؟

خلکو ورته وويل: هغه د سترګو په ناروغۍ اخته دی.

رسول الله صلى الله عليه وسلم وويل: ورشئ ماته يي راولئ، كله چې راغی نو پيغمبر عليه السلام يې په ستر ګولاړه ورپورې کړه او دعا يې ورته وکړه سمدستي يې ستر ګې داسې روغې شوې لکه بيخي يې چې رنځ ليدلی نه وي، نو بيرغ يې هغه ته په لاس ورکړ. علی کرم الله وجهه ورته وويل: اې د الله رسوله! ترهغو به ورسره جنګيږم څو مسلمانان شي؟

رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وويل: په کرار د رومه څو چې د دوی قلمرو ته ورسيږې، بيا دوی اسلام ته دعوت کړه او په هغو حقونويې پوه کړه چې د الله له لوري پر دوی لازم دي، زما دې په الله جل جلاله قسم وي چې که الله تعالی ستا په لاس يوه سړي ته هدايت وکړي، نو دا تا ته تر سرو اوښانو هم غوره ده.

الله تعالي فرمايي: كُنتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ وَتُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ ژباړه: تاسو (اې د محمد صلى الله عليه وسلم امته) بهتر د امتونو ياست، تاسو (خلکو) ته په نيکو امر کوئ او له بدو يې را ګرځوئ او په الله تعالی ايمان لرئ.

تفسير طبری د دغه آيت په تفسير کې د قتادة رضی الله عنه روايت رانقل کړی چې وايي: عن قتادة قال: ذُكر لنا أن عمر بن الخطاب قال في حجّة حجّها ورأى من الناس رِعَة سيئة، فقرأ هذه: " كنتم خير أمة أخرجت للناس "، الآية. ثم قال: يا أيها الناس، من سره أن يكون من تلك الأمة، فليؤد شرط الله منها.

ژباړه: له قتاده رضی الله عنه روايت شوی، چې موږ ته د حضرت عمر رضی الله عنه په اړه وويل شول، چې کله هغه حج ادا کاوه، نو له خلکو څخه يې بې ادبي

ولیدله، نو دا آیت یې ولوست، "کنتم خیر امة اخرجت للناس" بیا یې وویل: اې خلکو! که څوک دا خوښوي، چې له دغه امت څخه شي، نو د الله تعالی شرط دې پوره کړي، چې له دغه امت څخه یې غوښتی دی. یعنی امر بالمعروف او نهی عن المنکر دې وکړي، ځکه الله تعالی دغه امت ته بهتري له همدې امله ورکړی دی.

(۲۰) مجاهد ته لازم دي چې د الله حقوق په ځان او کورنۍ کې رعایت کړي په ځانګړې توګه په خپل وخت په جماعت لمونځ کول او که مسجد ته نشوای وتلای پخپل کور کې په جماعت لمونځ کول، صلابي د خلفاؤ په تاریخ کې لیکي چې عمر رضی الله عنه خپلو والیانو ته ولیکل: ماته ستاسو تر ټولو مهم کار د لمانځه ادا کول دي، چا چې د لمانځه پوره اهتمام وکړ خپل دین یې وساته او چا چې لمونځ ضائع کړ نور کارونه ضائع کول ورته ډېر اسانه دي، الله پاک په قرآن کریم کې فرمایي:

يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا قُوا أَنفُسَكُمْ وَأَهْلِيكُمْ نَارًا وَقُودُهَا النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ عَلَيْهَا مَلَائِكَةٌ غِلَاظٌ شِدَادٌ لَا يَعْصُونَ الله مَا أَمَرَهُمْ وَيَفْعَلُونَ مَا يُؤْمَرُونَ (٦) التحریم. ژباړه: اې د ایمان خاوندانو! تاسو خپل ځانونه او خپل اهل له داسې اور څخه وساتئ چې د هغه خاشاک خلک او کاڼي دي، ډېر سخت خویه او قوي ملایکي پرې مقرر دي، هغوی په هغه څه کې د الله نافرماني نه کوي چې دوی ته یې حکم کړی وي او هغه څه کوي چې دوی ته یې حکم کېږي.

(۲۱) امیر ته په کار ده چې همېشه دې له پوه خلکو سره مشوره کوي، کله چې ابوبکر صدیق رضی الله عنه د لښکر د مشر په توګه د یزید بن ابي سفیان د ټاکلو

اراده وکړه نو په توصیه کې یې ورته وویل: له ابو عبیده بن الجراح او معاذ بن جبل سره مشوره کوه او بغیر له دوی یو کار هم مه ترسره کوه. (کنزالعمال، ۱۴۰۸۹)

(۲۲) امیر باید د ښه تدبیر او تجربې خاوند وي، ابوهریره رضی الله عنه روایت کوي چې پیغمبر علیه السلام فرمایي: الحرب خدعة(بخاري ۳۰۲۹) جنګ چل دی، معنا دا چې کمین پکې ونیول شي تعرض پکې وشي او دښمن هر وخت تېر ایستل شي.

(۲۳) امیر او حاکم ته لازم دي چې د بندیانو او جاسوسانو په وژلو کې تلوار ونه کړي او د دوی په حق کې د هیچا خبره ونه مني، بلکې ښه سوچ او فکر دې پرې وکړي، ځکه په قتل کې تر خطا په عفوه کې خطا ډېره اسانه (ښه) ده ، الله تعالی فرمایي: يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنْ جَاءَكُمْ فَاسِقٌ بِنَبَإٍ فَتَبَيَّنُوا أَنْ تُصِيبُوا قَوْمًا بِجَهَالَةٍ فَتُصْبِحُوا عَلَى مَا فَعَلْتُمْ نَادِمِينَ. [الحجرات:٦]

ژباړه: اې د ایمان خاوندانو! که تاسو ته کوم فاسق (بدکاره سړی) خبر راوړي، نو تاسو ښه تحقیق کوئ، په دې چې تاسو به یو قوم ته په ناخبري سره تکلیف ورسوئ بیا به تاسو په خپلو کړو باندې پښېمانه شئ.

حضرت عائشة صدیقه رضی الله عنها روایت کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: "ادرَءُوا الحُدودَ عن المسلمين ما استطعتم، فإن كان له مخرج، فخلوا سبيله، فإن الإمام أن يخطئ في العفو، خير من أن يخطئ في العقوبة" (رواه الترمذي، ١٤٢٤).

ژباړه: ترکومه چې ستاسو په وس کې کیږي له مسلمانانو څخه حدود دفع کړئ که يې د خلاصون کومه لاره وه نو خلاص يې کړئ، ځکه امام که په عفوه کې خطا شي تر هغه ډیر غوره ده چې په عذاب ورکولو کې خطا شي.

## دعاګانې

ابو داود او ترمذي له عثمان بن عفان رضي الله عنه څخه روايت کړی:

چې رسول الله صلی الله علیه و سلم فرمايلي دي: هر هغه څوک چې هر سهار او ماښام (بسم الله الذي لا يضر مع اسمه شيء في الأرض ولا في السماء وهو السميع العليم)

درې ځلي و وايي هيڅ شی به زيان ورته ونشي رسولای.

کله چې مجاهدين جهاد ته روان وي دا دعا به کوي: اللّٰهُمَّ أَنْت عضدي ونصيري بك أجول وَبِك أصُول وَبِك أقَاتل ؟رواه الترمذي

کله چې دتعرض اراده وکړي دا دعا به کوي: اللّٰهُمَّ منزل الْكتاب ومجرى السَّحَاب وهازم الْأَحْزَاب اهزمهم وَانْصُرْنَا عَلَيْهِم؟ (رواه البخاري)

که چېرې د دښمن څخه وېرېدل چې حمله به را باندې وکړي دا دعا به وايي: اللّٰهُمَّ إِنَّا نجعلك فِي نحورهم ونعوذ بك من شرورهم : رواه ابن حبان

که چېرې مجاهدین دد ښمن له لوري محاصره شوو دا دعا به وايي؛ اللّٰهُمَّ اسْتُرْ عوراتنا وَأمن روعاتنا ؟ رواه احمد

کله چې مجاهدین پر یو ځاي کامیاب سي یو مشر به د ریږي مجاهدین به ټول شاته و دریږي دا دعا به کوي: اللّٰهُمَّ لَك الْحَمد كُله لَا قَابض لما بسطت وَلَا باسط لما قبضت وَلَا هادي لما أضللت وَلَا مضل لمن هديت وَلَا معطي لما منعت وَلَا مَانع لما أَعْطَيْت وَلَا مقرب لما باعدت وَلَا مباعد لما قربت اللّٰهُمَّ ابْسُطْ علينا من بركاتك ورحمتك وفضلك ورزقك اللّٰهُمَّ إِنِّي أَسأَلك النَّعيم الْمُقِيم الَّذِي لَا يحول وَلَا يَزُول اللّٰهُمَّ إِنِّي أَسأَلك الْأمان يَوْم الْخَوْف اللّٰهُمَّ إِنِّي عَائِذ بك من شَرّ مَا أَعطيتنَا وَمن شَرّ مَا منعتنا اللّٰهُمَّ حبب إِلَيْنَا الْإِيمَان وزينه فِي قُلُوبنَا وَكره إِلَيْنَا الْكفْر والفسوق والعصيان واجعلنا من الرَّاشِدين اللّٰهُمَّ توفنا مُسلمين وألحقنا بالصالحين غير خزايا وَلَا مفتونين اللّٰهُمَّ قَاتل الْكَفَرَة الَّذين يكذبُون بِيَوْم الدّين ويكذبون برسلك ويصدون عَن سَبِيلك وَاجعَل عَلَيْهِم رجزك وعذابك إِلَه الْحق آمين؟ (رواه النسائي)

عطا بن ابي رباح وايي : ماته حدیث رسیدلی چې رسول الله صلی الله علیه و سلم فرمایلي: څوک چې د ورځې په پیل کي سورة یس تلاوت کړي د ټولي ورځي اړتیاوي (حاجتونه) به یي پوره شي.(سنن الدارمي/٣٤٦١).

سبحان الله و بحمده سبحان الله العظیم وصلی الله علی خیر خلقه اجمعین برحمتک یا ارحم الراحمین

# لړلیک

